اَوَلَیْسَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓی اَنْ

آیا نهٔ دے | هغه ذات چه | پیدا ئے کړل | آسمانونه | او زمکه | قادر | په دے چه

آیا هغه الله تعالیٰ چاچه آسمانونه او زمکه پیدا کړل په دِے خبرے قادر نهٔ دے چه هغه به دَ دوئ

یَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ۚ بَلٰی ۗ وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِیْمُ ﴿۸۱﴾ اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ اِذَآ

پیدا کړی | په شان دَ دوی | ولے نه | هم دے هر څهٔ پیدا کوونکے | پوهه دے | دَ دهٔ حکم خو دا دے | هر کله چه

غوندِ نور (خلق) را پیدا کړی ؟ ولے نه ! هم هغه خو پیدا کوونکے او پوهه دے ، دَ هغه شان دا دے چه څهٔ وخت

اَرَادَ شَیْـًٔا اَنْ یَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَیَكُوْنُ ﴿۸۲﴾ فَسُبْحٰنَ الَّذِیْ

دَ اراده وکړی | دَ څهٔ څیز | نو دے فرمائی | هغه څیز ته | چه شه | پس هغه شی | پس پاک دے | هغه ذات چه

هغه دَ څهٔ څیز اراده وکړی نو ورته وائی چه شه نو هغه شی ۔ پس پاک دے هغه الله تعالیٰ

بِیَدِهٖ مَلَكُوْتُ كُلِّ شَیْءٍ وَّاِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۳﴾

په لاس کښے دَ دهٔ | بادشاهی ده | دَ هر | څیز | او طرف دَ دهٔ ته | به تاسو واپس کړے شئ

چه دَچا په لاس کښے دَ هر یو څیز پوره پوره اختیار دے او تاسو تول به هغهٔ ته پستنه ورځئ ۔

سُوْرَةُ الصّٰفّٰتِ مَكِّیَّةٌ وَّهِیَ مِائَةٌ دَ اثْنَتَا دَ ثَمَانُوْنَ اٰیَةً وَّخَمْسُ رُكُوْعَاتٍ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

سوره صٰفّٰت په مکه کښے نازل شوا وپه دے کښے ۱۸۲ آیتونه او ۵ رکوع کانے دی | (شروع) دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

دَ الله په نامهٔ شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا ﴿۱﴾ فَالزّٰجِرٰتِ زَجْرًا ﴿۲﴾ فَالتّٰلِیٰتِ ذِكْرًا ﴿۳﴾ اِنَّ

قسم دے په صف تړونکو فرښتو باندِ | پس قسم دے په هغه تولی چه شړونکی دی په شړلو سره | بیا تلاوت کوونکو | دَ قرآن | بیشکه

قسم دے په هغه تولګو چه په صفونو کښے په قطارو ولاړ دی او په هغه کسانو چه (شیطانان) په کلکه رټی او په هغه کسانو چه دَ قرآن تلاوت کوی بیشکه

اِلٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ ﴿۴﴾ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَیْنَهُمَا وَرَبُّ

ستاسو معبود | یو دے | چه رب دے | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او هغه څهٔ چه | دَ دوی په مینځ کښے دی | او رب دے

ستاسو معبود یو دے ۔ هغه دَ آسمانونو او دَ زمکے او دَدِے ترمینځهٔ دَ ټولو څیزونو رب دے او دَ نمر راختلو

الْمَشَارِقِ ﴿۵﴾ اِنَّا زَیَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْیَا بِزِیْنَةِ الْكَوَاكِبِ ﴿۶﴾

دَ مشرقونو | بیشکه | مونږ ښائست ورکړو | آسمان | دَ دُنیا ته | په ښائست | دَ ستورو سره ۔

دَ ځایونو رب دے ۔ دا مونږ دَ یُو چه دَ دُنیا آسمان مو په یو عجیبه رونق یعنی په ستورو ښائسته کړے دے

وَحِفْظًا مِّنْ كُلِّ شَیْطٰنٍ مَّارِدٍ ﴿۷﴾ لَا یَسَّمَّعُوْنَ اِلَی الْمَلَاِ الْاَعْلٰی

او بچ مو ساتلو | له هر شیطان | سرکش نه | غوږ نهٔ شی ایښوے | طرف دَ فرښتو | اعلیٰ ته

او دَ هر یو سرکش شیطان نه مو دَ هغے حفاظت کړے دے ۔ (شیطانان) (دَ فرښتو دَ) مجلس اعلیٰ هیڅ خبره نهٔ شی

وَیُقْذَفُوْنَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ﴿۸﴾ دُحُوْرًا وَّلَهُمْ عَذَابٌ

او دوی ویشتلے شی | له هر | طرف نه | دَ تښتولو دَ پاره | او دوی دَ پاره | عذاب دے

اوریدے او دَ هر طرف نه دَ دوئ دَ تښتولو دَ پاره په دوئ باندِ (سرو ټکے) غورځولے شی او دَ دوئ دَ پاره دائمی

وَّاصِبٌ ۙ﴿۹﴾ اِلَّا مَنۡ خَطِفَ الۡخَطۡفَةَ فَاَتۡبَعَهٗ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴿۱۰﴾

همیشه | مگر هغه څوک | چه راوتښتوی | یو را تښتول | نو ورپسې شی دهٔ پسې | شعله | سوزونکې

عذاب دے ۔ البته کۀ چا پټکښې چرته یو نیم خبر وتښتولو نو یوه ګرمه ځلنده شعله ورپسې ورروانه شی

فَاسۡتَفۡتِهِمۡ اَهُمۡ اَشَدُّ خَلۡقًا اَمۡ مَّنۡ خَلَقۡنَا ؕ اِنَّا خَلَقۡنٰهُمۡ

پس تپوس وکړه له دوئ نه | آیا دَ دوئ | پیدا کول ډیر سخت دی | یا دَ هغه چا | چه پیدا کړل مونږ | بیشکه مونږ پیدا کړل دوئ

نو دَ دوئ نه تپوس وکړه چه دَدې خلقو پیدا کول سخت دی یا دَ هغه تولو څیزونو کوم چه مونږ پیدا کړی دی، مونږ دا خلق دَ یوے

مِّنۡ طِيۡنٍ لَّازِبٍ ﴿۱۱﴾ بَلۡ عَجِبۡتَ وَيَسۡخَرُوۡنَ ﴿۱۲﴾ وَاِذَا ذُكِّرُوۡا

له خټې | مښتې نه | بلکه | تعجب وکړو تا | او دوی ټوقې کوی | او هرکله چه | دوئ ته نصیحت کولے شی

ښلیښناکے خټې نه راپیدا کړی دی بلکه تۀ خو (دَ دوئ په انکار) تعجب کوے او دوئ (په تا پورے) خندا کانے کوی او هرکله چه دوئ

لَا يَذۡكُرُوۡنَ ﴿۱۳﴾ وَاِذَا رَاَوۡا اٰيَةً يَّسۡتَسۡخِرُوۡنَ ﴿۱۴﴾ وَقَالُوۡۤا اِنۡ هٰذَاۤ

(نو) دوی نصیحت نۀ قبلوی | او هرکله چه | دوی وینی | څۀ نخښه | نو دوئ ئے په خندا واخلی | او وائی | نۀ دی | دا (څۀ نور)

پوهولے شی نو دوئ نۀ پوهیږی ۔ او هرکله چه دوی یوه معجزه ووینی نو په هغے پورے ملنډے کوی . او دا ووائی چه دا خو

اِلَّا سِحۡرٌ مُّبِيۡنٌ ۚۖ﴿۱۵﴾ ءَاِذَا مِتۡنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبۡعُوۡثُوۡنَ ﴿۱۶﴾ ۙ

مګر | جادو | ښکاره | آیا هرکله چه مونږ مړهٔ شو | او خاورے شو | او هډوکی | آیا مونږ به | دوباره راپاڅولے شُو؟

ښکاره جادو دے ۔ آیا هرکله چه مونږ مړهٔ شو او خاورے او هډوکی شو نو لا بیا به راژوندی کیږو ؟

اَوَ اٰبَآؤُنَا الۡاَوَّلُوۡنَ ﴿۱۷﴾ ؕ قُلۡ نَعَمۡ وَاَنۡتُمۡ دٰخِرُوۡنَ ﴿۱۸﴾ ۚ فَاِنَّمَا هِىَ

آیا زمونږ پلاران | پخوانی (هم) | ووایه | هو (ضرور) | او تاسو به | ذلیل یئ | پس هغه خو به وی

او آیا زمونږ پلار نیکۀ به هم لا راژوندی کیږی ؟ تۀ ووایه هو! او تاسو به ذلیل او خوار یئ ۔ قیامت به بس هیله

زَجۡرَةٌ وَّاحِدَةٌ فَاِذَا هُمۡ يَنۡظُرُوۡنَ ﴿۱۹﴾ وَقَالُوۡا يٰوَيۡلَنَا هٰذَا يَوۡمُ

یوه چغه | پس ناګهانه به دوی | ګوری | او دوئ به وائی | هائے زمونږ بدبختی! | هم دا ده | ورځ

یوه چغه وی ۔ نو دوئ تول به لیدل کتل شروع کړی ۔ او دا به ووائی چه هائے زمونږه بدنصیبه ! دا خو دَ قیامت

الدِّيۡنِ ﴿۲۰﴾ هٰذَا يَوۡمُ الۡفَصۡلِ الَّذِىۡ كُنۡتُمۡ بِهٖ تُكَذِّبُوۡنَ ﴿۲۱﴾ ؑ اُحۡشُرُوا

دَ جزا | هم دا ده | ورځ | دَ فیصلے | کومه چه به | تاسو دروغ ګڼړله | راجمع کړئ

ورځ (په بښنیا) راغله ، دا هم هغه دَ فیصلے ورځ ده چه تاسو به دروغ ګڼړله ، تول ظالمان خلق

الَّذِيۡنَ ظَلَمُوۡا وَاَزۡوَاجَهُمۡ وَمَا كَانُوۡا يَعۡبُدُوۡنَ ﴿۲۲﴾ ۙ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ

کوم چه | ظلم وکړو | او دَ دوئ ملګری | او دَ کومو | چه دوئ عبادت کولو | دَ الله نه سیوا

او دَ هغوئ ملګری او ورسره دَ هغوئ معبودان راجمع کړئ چه دَ الله نۀ بغیر به ئے دوئ عبادت کولو

فَاهۡدُوۡهُمۡ اِلٰى صِرَاطِ الۡجَحِيۡمِ ﴿۲۳﴾ الربع وَقِفُوۡهُمۡ اِنَّهُمۡ مَّسۡـُٔوۡلُوۡنَ ﴿۲۴﴾ ۙ

پس تاسو وښایئ دوئ ته | لاره | دَ دوزخ | او را ایسار کړئ دوی | بیشکه له دوئ نه | به تپوس کولے شی

او بیا دوئ دَ دوزخ په لاره روان کړئ او دوئ را ایسار کړئ دوئ نه به یوه پوښتنه کیږی ۔

ع ۲۱ ۵ — الربع

مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُوْنَ ﴿٢٥﴾ بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُوْنَ ﴿٢٦﴾

څه وشو په تاسو | چه د يو بل سره مدد نه کوئ | بلکه | دوئ | نن ورځ | فرمانبرداردي -

چه دا اوس څه چل دے چه تاسو د يو بل امداد نه کوئ بلکه دوئ ټول به په دغه ورځ (د شرم نه) سرونه ټيټ ولاړ وي -

وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ ﴿٢٧﴾ قَالُوْٓا اِنَّكُمْ

او را مخامخ به شي | ځنے له دوي نه په ځنو بانډې | چه له يو بل نه به تپوس کوي | دوي به وائي | بيشکه تاسو

او يو بل ته به وګوري او تپوسونه به شروع کړي - مريدان به ورته ووائي چه تاسو به په مونږ

كُنْتُمْ تَاْتُوْنَنَا عَنِ الْيَمِيْنِ ﴿٢٨﴾ قَالُوْا بَلْ لَّمْ تَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿٢٩﴾

راتلئ مونږ ته | له ښي طرف نه | دوي به وائي | بلکه | نه وئ تاسو | مؤمنان

بانډې د ښي ډډے نه ډير په زور کښے راتلئ - مشران به ورته جواب ورکوي چه نا بلکه تاسو خو به په خپله ايمان نه راوړو -

وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ ۚ بَلْ كُنْتُمْ قَوْمًا طٰغِيْنَ ﴿٣٠﴾

او نه وو | زمونږ | په تاسو بانډې | څه زور | بلکه | وئ تاسو | خلق له حد نه تيريدونکي

او زمونږ خو په تاسو څه زور نه وو ، خو تاسو به په خپله سرکشي کوله -

فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَآ ۖ اِنَّا لَذَآئِقُوْنَ ﴿٣١﴾ فَاَغْوَيْنٰكُمْ اِنَّا

پس ثابته شوه | په مونږ بانډې | خبره | زمونږ د رب | بيشکه مونږ | څکونکي يو | پس مونږ بے لارے کړئ تاسو | بيشکه مونږ

نو اوس په مونږ ټولو بانډې د خپل رب خبره ثابته شوه او س مونږ ضرور (د عذاب) مزه څکو بيشکه چه مونږ تاسو ګمراه کړئ (خو مونږ

كُنَّا غٰوِيْنَ ﴿٣٢﴾ فَاِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ فِى الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ ﴿٣٣﴾

ؤو | بے لارے | پس بيشکه دوي به | په دغه ورځ | په عذاب کښے | شريک دي

په خپله هم ګمراه وو ، نو دا ټول به په دغه ورځ په عذاب کښے شريک دي -

اِنَّا كَذٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ ﴿٣٤﴾ اِنَّهُمْ كَانُوْٓا اِذَا قِيْلَ

بيشکه مونږ | هم دغه شان | کوؤ | د مجرمانو سره | بيشکه دوي | ؤو (داسے) | چه هرکله به | وويلے شو

مونږ داسے مجرمانو سره هم دغه شان کوؤ دوئ داسے خلق ؤو چه ورته به وويلے شو چه د

لَهُمْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ۙ يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿٣٥﴾ وَيَقُوْلُوْنَ ۙ اَئِنَّا لَتَارِكُوْٓا

دوي ته | چه نشته د بل څوک معبود | سيوا د الله نه | نو دوي به تکبر کولو | او دوي به ويئيل | چه آيا مونږ پريږدو

الله نه بغير بل معبود نشته ، نو دوئ به تکبر کولو - او دا به ئے ويئيل چه آيا مونږ د يو ليونی

اٰلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَّجْنُوْنٍ ﴿٣٦﴾ ؕ بَلْ جَآءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ

خپل معبودان | (د په وينا د) يو شاعر | ديوانه | بلکه | دا خو راوړے دے | حق (دين) | او دا تصديق وکړو

شاعر په وينا خپل معبودان پريږدو ؟ نا ! بلکه دے پيغمبر يو رښتينے دين راوړے دے او د ټولو پيغمبرانو

الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٣٧﴾ اِنَّكُمْ لَذَآئِقُوا الْعَذَابِ الْاَلِيْمِ ﴿٣٨﴾ ۚ وَمَا تُجْزَوْنَ

د پيغمبرانو | بيشکه تاسو | څکونکي يئ | د عذاب | دردناک | او بدله به نه شي درکولے

تصديق کوي - تاسو ټول به د دردناک عذاب خوند څکئ - او تاسو ته به نور څه نه

إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٣٩﴾ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴿٤٠﴾

مگر | دَ هغه څهٔ | چه تاسو به کول | مگر | بندګان دَ الله | خالص کړی شوی

خو بس تش دَ خپل عمل بدله به درکولے شی ، مگر دَ الله تعالیٰ مخلص بندګان به دَ عذاب نه خلاص وی

أُولَٰئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُومٌ ﴿٤١﴾ فَوَاكِهُ ۖ وَهُم مُّكْرَمُونَ ﴿٤٢﴾

هم داخلق دی | چه دوی دَپاره | رزق دے | معلوم | میوے | او دوی به | عزتمند وی ـ

هغوئ له داسے خوراکونه مقرر دی چه دَ هغے حال معلوم دے ، قسم قسم میوے دی او هغوی به ډیر په درناوی ناست وی ـ

فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿٤٣﴾ عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ ﴿٤٤﴾ يُطَافُ عَلَيْهِم

په باغونو کښے | دَ نعمت | په تختونو بانډِ (به وی) | یو بل ته مخامخ | ګرځولے به شی | په دوی بانډِ

دَ آرام په باغونو کښے ، په تختونو به یو بل ته مخامخ ناست وی ـ دَ بهیدونکو شرابو ډک ډک جامونه

بِكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ ﴿٤٥﴾ بَيْضَاءَ لَذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ ﴿٤٦﴾ لَا فِيهَا

یو جام | له جاری شرابونه | سپین | خوندورکوونکی | څښونکو ته | نهٔ به په دے کښے

به پرے ګرځولے شی ، تک سپین چه دَ څښونکو دَپاره به ډیر خوندناک وی ، نهٔ به پرے سر

غَوْلٌ وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ ﴿٤٧﴾ وَعِندَهُمْ قَاصِرَاتُ

درد دَ سروی | او نهٔ به دوی | له دے نه | نشه شی | او دوی سره (به بنځے وی) | بنکته ساتونکی

ګرځوی او نهٔ به ورله په عقل کښے فتور راولی ـ او ورسره به دَ حیا نه ښکته کتونکے دَ غټو غټو

الطَّرْفِ عِينٌ ﴿٤٨﴾ كَأَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُونٌ ﴿٤٩﴾ فَأَقْبَلَ

دَ نظر | غټو سترګو والا | لکه چه دوی | اګئی دی | په پرده کښے پټے کړے شوے | پس را مخامخ به شی

سترګو والا ښځے وی ـ لکه چه اګئی په پرده کښے سنبالے پټے پرتے وی ـ نو بیا هغوئ به

بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ﴿٥٠﴾ قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ

ځنے له دوی نه | په ځنو بانډِ | (او) په خپل مینځ کښے به تپوس به کوی | وُ به وائی | یو ویونکے | له دوی نه

یو بل ته مخامخ شی او تپوسونه به کوی ـ یو تن به په کښے وائی چه زما یو

إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ ﴿٥١﴾ يَقُولُ أَإِنَّكَ لَمِنَ الْمُصَدِّقِينَ ﴿٥٢﴾ أَإِذَا

بیشکه وو زما | یو ملګرے | هغهٔ به وئیل | چه آیا تهٔ یئے | له تصدیق کوونکو نه؟ | آیا هر کله چه

ملاقاتی وو ، هغه به ماته وئیل چه آیا تهٔ (هم) دَ قیامت تصدیق کوے ؟ آیا مونږ

مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَدِينُونَ ﴿٥٣﴾ قَالَ هَلْ

مونږ مړهٔ شو | او شُو مونږ | خاورے | او هډوکی | (نو) آیا مونږ ته به | بدله راکولے شی | ارشاد به وُشی | آیا

چه مړهٔ شو او خاورے او هډوکی شو نو آیا مونږ ته به جزا یا سزا راکولے شی؟ ورته به و وئیلے شی چه

أَنتُم مُّطَّلِعُونَ ﴿٥٤﴾ فَاطَّلَعَ فَرَآهُ فِي سَوَاءِ الْجَحِيمِ ﴿٥٥﴾ قَالَ

تاسو | کتل غواړئ؟ | پس دے به وګوری | نو وُ به وینی دے | په مینځ | دَ دوزخ کښے | دے به ووائی

تاسو (په هغهٔ پسے) ښکته کتل غواړئ؟ نو هغه به وُګوری او خپل ملګرے به دَ دوزخ په مینځ کښے پروت بیا مومی ـ دے به ووائی

تَاللّٰهِ اِنْ كِدْتَّ لَتُرْدِيْنِ ﴿٥٦﴾ وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّيْ لَكُنْتُ

قسم په الله | نږدې وې ته چې ته | چې زه به دې هلاک کړې وم | او که چېرته نه وې | فضل | زما د رب | نو زه به ضرور وم

چې قسم دې په الله! ته خو زه تباه کولم ۔ او که په ما د خپل رب فضل شوی نه وی، نو زه به هم (لکه

مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ ﴿٥٧﴾ اَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ ﴿٥٨﴾ اِلَّا مَوْتَتَنَا

له حاضر کړې شوو (مجرمانو) نه | پس آیا نه یو | مونږ | مړه کیدونکي | مګر | مړه کیدل زمونږ

ستا) راښیول شوی وم ۔ آیا (دا یقیني نه ده چې) مونږ به بیا نه مرو؟ سیوا (د دنیا) د ړومبي

الْاُوْلٰى وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿٥٩﴾ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ

د ړومبي ځل | او نه یو مونږ | عذاب راکړې شوونه | بیشکه | هم دا ده | کامیابي

مرګ نه او نه به چرې راته عذاب راکولې شي؟ بیشکه دا ډیره لویه کامیابي

الْعَظِيْمُ ﴿٦٠﴾ لِمِثْلِ هٰذَا فَلْيَعْمَلِ الْعٰمِلُوْنَ ﴿٦١﴾ اَذٰلِكَ خَيْرٌ

ډیره لویه | د دا سې (کامیابۍ) د پاره | پکار دي چې عمل وکړي | عمل کوونکي | آیا دا ده | ښه

ده ۔ هم د دا سې کامیابۍ د پاره عمل کوونکو له عمل کول پکار دي آیا دا میلمستیا غوره

نُّزُلًا اَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ ﴿٦٢﴾ اِنَّا جَعَلْنٰهَا فِتْنَةً لِّلظّٰلِمِيْنَ ﴿٦٣﴾

میلمستیا | یا | اُونه | د زقوم | بیشکه مونږ جوړه کړې دا | یو آزمیښت | د ظالمانو د پاره

ده او که د زقوم اُونه؟ مونږ دغه اُونه د ظالمانو د پاره یوه فتنه د عذاب جوړه کړې ده

اِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِيْٓ اَصْلِ الْجَحِيْمِ ﴿٦٤﴾ طَلْعُهَا كَاَنَّهٗ رُءُوْسُ

بیشکه دا | یوه اونه ده | چې راوځي | په مینځ | د دوزخ کښې | چې غونچکه د هغې | لکه چې هغه | چیچې دي

دغه یوه داسې اونه ده چې د دوزخ په ویخ کښې راتوکیږي ۔ د هغې غونچکه داسې ده لکه د مارانو

الشَّيٰطِيْنِ ﴿٦٥﴾ فَاِنَّهُمْ لَاٰكِلُوْنَ مِنْهَا فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا

د مارانو | پس بیشکه دوی به | خامخا خوري | له هغې نه | بیا ډکې به کړي دوی | له هغې نه

چیچې ۔ نو دوی به د هغې نه خوراک کوي او هم د هغې نه به خیټې

الْبُطُوْنَ ﴿٦٦﴾ ثُمَّ اِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ ﴿٦٧﴾

خیټې | بیا به | بیشکه دوی د پاره | د دې د پاسه | ګډوډ (د نوږو) دي | له یشید لو اُوبو نه

ډکوي، بیا به ورته د دې د پاسه یشیدلې خړوبوړنې اوبه ورکولې شي ۔

ثُمَّ اِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَاِلَى الْجَحِيْمِ ﴿٦٨﴾ اِنَّهُمْ اَلْفَوْا اٰبَآءَهُمْ

بیا | بیشکه | بیرته ګرځیدل د دوی به | طرف د دوزخ ته وي | بیشکه دوی | موندلي وو | خپل پلارنیکه

بیا به دوی له د دوزخ طرف ته واپس ګرځیدل وي ۔ بیشکه دوی خپل مشران ګمراه

ضَآلِّيْنَ ﴿٦٩﴾ فَهُمْ عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ يُهْرَعُوْنَ ﴿٧٠﴾ وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ

بې لارې | پس دوی (هم) | د هغوی د قدمونو په نښان | په منډه روان وو | او بیشکه بې لارې شوي وو | وړاندې له دوی نه

موندلي وو ۔ نو دوی هم ورپسې قدم په قدم په منډه روان وو ۔ او د دوی نه وړاندې هم اکثر پخواني

اَكْثَرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۷۱﴾ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا فِيْهِمْ مُّنْذِرِيْنَ ﴿۷۲﴾ فَانْظُرْ

ډیر | پخوانی خلق | او بیشکه | موږ لیږلی وو | په هغوئی کښې (هم) | ویروُنکی | پس وګوره چه

خلق ګمراه شوی ؤو ـ او موږ په هغوئی کښې هم ویرُونکی لیږلی ؤو ، نو ته وګوره چه

كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿۷۳﴾ اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۷۴﴾

څنګه | شو | انجام | دَویروَلی شوو | سیوا | دَبندګانو | دَالله | خالص کړے شوو نه

دَ هغه ویرولی شو خلقو انجام څهٔ شو ؟ سیوا دَ الله تعالیٰ دَ خاصو بندګانو نه ـ

وَلَقَدْ نَادٰىنَا نُوْحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيْبُوْنَ ﴿۷۵﴾ وَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗ

او بیشکه | آوازو کړو موږ ته | نوح ؑ | پس (موږ) څهٔ ښهٔ | جواب ورکوونکی یُو | او خلاصے ورکړو موږ دهٔ ته | او دَ دهٔ کوروالوُ ته

او نوح ؑ موږ ته آواز وکړو نو موږ ډیر ښهٔ فریاد رس یو ـ او موږ هغه هم او دَهغهٔ دَ کور خلق هم

مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿۷۶﴾ وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهٗ هُمُ الْبٰقِيْنَ ﴿۷۷﴾ وَتَرَكْنَا

له مصیبت | ډیر لوئے نه | او کړو موږ | اولاد دَ دهٔ | هم دوی باقی پاتے کیدونکی دی | او پریښودو له موږ

دَ ډیر دروند غم نه خلاص کړل ـ او صرف هم دَ هغهٔ اولادمو باقی پاتے پریښودو ـ او په وروستوراتلونکو

عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿۷۸﴾ سَلٰمٌ عَلٰى نُوْحٍ فِي الْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۹﴾ اِنَّا كَذٰلِكَ

په دهٔ (ثنانیکه) | په وروستو راتلونکو خلقو کښې | سلام دِ وی | په نوح ؑ باندِ | په ټولو جهانونو کښې | بیشکه موږ | هم دغه شان

خلقو کښې مو داخبره دَهغهٔ دَپاره پاتے پریښوده چه په ټول مخلوق کښې دِ په هغهٔ سلام وئیلے شی ـ موږ نیکانو له هم

نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۸۰﴾ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۸۱﴾ ثُمَّ اَغْرَقْنَا

جزا ورکوؤ | نیکانو خلقو ته | بیشکه دے | زموږ له مؤمنانو بندګانو نه دے | بیا | غرق کړل موږ

دغسے بدله ورکوؤ ـ هغه زموږ یو ایماندار بنده وو ـ بیا مونور خلق (یعنی کافران)

الْاٰخَرِيْنَ ﴿۸۲﴾ وَاِنَّ مِنْ شِيْعَتِهٖ لَاِبْرٰهِيْمَ ﴿۸۳﴾ اِذْ جَآءَ رَبَّهٗ

نور خلق | او بیشکه | دَ دهٔ دَ طریقے په خلقو کښې | ابراهیم ؑ هم وو | هر کله چه دے راغے | خپل ربّ ته

ډوب کړل ـ او دَ هغهٔ دَ طریقے په خلقو کښې ابراهیم ؑ (هم) وو چه خپل رب ته په صفا زړه

بِقَلْبٍ سَلِيْمٍ ﴿۸۴﴾ اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَاذَا تَعْبُدُوْنَ ﴿۸۵﴾

په زړهٔ | صفا سره | هر کله چه دهٔ وُوئیل | خپل پلار ته | او خپل قوم ته | دَ څهٔ څیز | عبادت کوئ تاسو ؟

زړهٔ متوجه شو ـ څهٔ وخت چه هغهٔ خپل پلار ته او خپل قوم ته ووئیل چه تاسو دَ څهٔ څیز عبادت کوئ ؟

اَئِفْكًا اٰلِهَةً دُوْنَ اللّٰهِ تُرِيْدُوْنَ ﴿۸۶﴾ فَمَا ظَنُّكُمْ بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۸۷﴾

آیا دَ دروغو | معبودان | سیوا | دَ الله نه | تاسو غواړئ | پس څهٔ خیال دے ستاسو | په رب دَ ټولو جهانونو

آیا دَ الله تعالیٰ نه بغیر ګمان له دَ دروغو معبودان لټوئ نو دَ رب العالمین په حقله ستاسو څهٔ خیال دے ؟

فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُوْمِ ﴿۸۸﴾ فَقَالَ اِنِّيْ سَقِيْمٌ ﴿۸۹﴾ فَتَوَلَّوْا عَنْهُ

بیا دهٔ وکتل یو نظر | ستورو ته | بیائے ووئیل | بیشکه زهٔ | بیمار یم | پس دوی واپس شول | له دهٔ نه

بیا (ابراهیم ؑ) دَ ستورو طرف ته وُکتل ـ او وائے ووئیل چه زهٔ ناجوړه یم ـ غرض دا چه هغوئ ترے نه لاړل

مُدْبِرِيْنَ ﴿٩٠﴾ فَرَاغَ اِلٰٓى اٰلِهَتِهِمْ فَقَالَ اَلَا تَاْكُلُوْنَ ﴿٩١﴾ مَا لَكُمْ

شا کرځونکی | پس په پټه ورغی دے | د دوئی معبودانو ته | پس وے وئیل | آیا تاسو خوری نه ؟ | څه وشول په تاسو

روان شول - ابراهیمؑ د هغوئی معبودانو ته ورغے نو ورته ئے وویل چه آیا تاسو خوراک ځښناک نه کوئی ؟ داڅه درباندې

لَا تَنْطِقُوْنَ ﴿٩٢﴾ فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًاۢ بِالْيَمِيْنِ ﴿٩٣﴾ فَاَقْبَلُوْٓا اِلَيْهِ

چه تاسو خبرے نه کوئی | پس متوجه شو دے | په دوی باندې | په وهلو | په ښی لاس سره | پس را مخامخ شول دوی | ده ته

وُشو ، تاسو خبرے هم نه کوئی ؟ بیا په ښی لاس یعنی پوره قوت سره ئے د دوئی ماتول شروع کړل - نو هغه خلق ورله په منډه

يَزِفُّوْنَ ﴿٩٤﴾ قَالَ اَتَعْبُدُوْنَ مَا تَنْحِتُوْنَ ﴿٩٥﴾ وَاللّٰهُ

په منډه | ده وویل | آیا تاسو عبادت کوئی | د هغه څه چه | تاسو ئے پخپله تراشئ | او | الله

(پسته) راغلل - ابراهیمؑ ورته وویل چه تاسو د هغه بتانو عبادت کوئی چه په خپلو لاسو ئے تراشئ - حال دا چه تاسو هم

خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٦﴾ قَالُوا ابْنُوْا لَهٗ بُنْيَانًا فَاَلْقُوْهُ

پیدا کړی تاسو | او څه چه | تاسو جوړوئی | دوی وویل | جوړ کړئ | ده د پاره | یو مکان | پس وا چوئ دے

او ستاسو جوړ کړی ټول څیزونه هم صرف الله پیدا کړی دی ، هغوئی وویل چه ده له یو اور تیار کړئ نو دے په سُور اَنګار

فِى الْجَحِيْمِ ﴿٩٧﴾ فَاَرَادُوْا بِهٖ كَيْدًا فَجَعَلْنٰهُمُ الْاَسْفَلِيْنَ ﴿٩٨﴾

په ډیر اور کښے | پس اراده وُکړه دوی | د ده خلاف | د فریب کولو | پس مونږ کړل دوی | ښکته ښکته

کښے ورڅغورځوئی - غرض دا چه هغوئی د ابراهیمؑ خلاف سازش وکړو نو مونږ هغوئی ښکته وغورځول - او

وَقَالَ اِنِّىْ ذَاهِبٌ اِلٰى رَبِّىْ سَيَهْدِيْنِ ﴿٩٩﴾ رَبِّ هَبْ لِىْ

او ده وویل | بیشکه زه | تلونکے یم | خپل ربّ طرف ته | او س به دے ما ته لاره وُښائی | اے زما ربه ! | را کړه | ما ته

ابراهیمؑ وویل چه زه خپل رب طرف ته روان یم هغه به ما ته سمه لاره وُښائی - اے زما ربه ! ما له یو نیک ځوئے

مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١٠٠﴾ فَبَشَّرْنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِيْمٍ ﴿١٠١﴾ فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ

(ځوئے) له صالحانو نه | پس مونږ زیرے ورکړو ده ته | د یو هلک | بُردبار | بیا هر کله چه | دے ورسید | د ده سره

را کړه ! نو مونږ ده ته د یو صابره هلک زیرے ورکړو - نو بیا څه وخت چه هغه د خپل پلار

السَّعْىَ قَالَ يٰبُنَىَّ اِنِّىْٓ اَرٰى فِى الْمَنَامِ اَنِّىْٓ اَذْبَحُكَ فَانْظُرْ

د منډے (عمر ته) | ده وویل | اے زما ځویه ! | بیشکه زه | وینم | په خوب کښے | چه زه ذبح کوم تا | پس وُګوره

سره د کرځیدُ عمر ته ورسیدو نو ابراهیمؑ ورته وویل چه اے ځویه ! په خوب کښے څه ګورم چه تا حلالوم نو ته هم غور وکړه (او

مَاذَا تَرٰى قَالَ يٰٓاَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ سَتَجِدُنِىْٓ

ستا څه رائے ده ؟ | ده وُوئیل | اے زما پلاره ! | وُکړه | څه چه | تا ته حکم شوے دے | ته به ډیر زر ما بیا مومے

ما ته ووایه) چه ستا څه رائے ده ؟ ځوئے ورته وویل چه بابا ! تا ته چه څه حکم شوے دے هغه په ځائے کړه - انشاء الله

اِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿١٠٢﴾ فَلَمَّآ اَسْلَمَا وَتَلَّهٗ لِلْجَبِيْنِ ﴿١٠٣﴾

که چرے الله وغواړی | له صبر کوونکو نه | بیا هر کله چه | دواړو (حکم) وُمنلو | او واے چولو دے | په طرف د تندی

ما به صابره بیا مومے - بیا چه دے دواړو د الله حکم وُمنلو او پلار ځوئے په طرف د مخ څملولو

وَنَادَيْنٰهُ أَنْ يّٰٓإِبْرٰهِيمُ ﴿١٠٤﴾ قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا ۚ إِنَّا

او آواز وکړو مونږ دهٔ ته | چه | اے ابراهیمٔ ! | بیشکه تا رښتیا کړو | خوب | بیشکه مونږ

او مونږ ورته آواز وکړو چه اے ابراهیمٔ ! تا خوب واقعی رښتیا کړو ، بیشکه مونږ

كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿١٠٥﴾ إِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْبَلٰٓؤُا الْمُبِينُ ﴿١٠٦﴾

دغه شان | بدله ورکوُو | نیکانو ته | بیشکه | هم دا دے | آزمیښت | ښکاره ۔

نیکانو بندګانو ته هم دغه شان بدله ورکوو ۔ واقعی دا یو ډیر لوئے آزمیښت وو ۔

وَفَدَيْنٰهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ ﴿١٠٧﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِينَ ﴿١٠٨﴾

او مونږ بدل کښې ورکړه دهٔ ته | یوه حلاله لویه | او پریښودله مونږ | په دهٔ (ثنا نیکه) | په وروستو راتلونکو خلقو کښې

او مونږ دَ دِے په بدله کښے دهٔ ته یوه لویه قربانی ورکړه ۔ او په راتلونکو خلقو کښے مو دا خبره دَ دهٔ په نامه باقی پریښوده

سَلٰمٌ عَلٰٓى إِبْرٰهِيمَ ﴿١٠٩﴾ كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿١١٠﴾ إِنَّهُ

(چه) سلام دِ وی | په ابراهیمٔ باندِ | دغه شان | مونږ جزا ورکوُو | نیکانو ته | بیشکه دے وو

چه په ابراهیمٔ دِ سلام وی ۔ مونږ نیکانو بندګانو ته هم دغه شان بدله ورکوُو بیشکه هغه

مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴿١١١﴾ وَبَشَّرْنٰهُ بِإِسْحٰقَ نَبِيًّا

زمونږ له ایماندارو بندګانو نه | او مونږ زیرے ورکړو دهٔ ته | دَ اسحاق | چه نبي به وی

زمونږ له مؤمنانو بندګانو نه وو او مونږ (ابراهیمٔ) ته دَ اسحاق زیرے ورکړو چه نبی او

مِّنَ الصّٰلِحِينَ ﴿١١٢﴾ وَبٰرَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلٰٓى إِسْحٰقَ ۚ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا

له صالحانو خلقو نه | او برکت ورکړو مونږ | دهٔ ته | او اسحاق ته | او دَ دِے دواړو له اولاد نه

نیک بخت به وی ۔ او مونږ ابراهیمٔ او اسحاقٔ دَ برکتونو خاوندان کړل ، او دَ دِے دواړو په اولاد کښے

مُحْسِنٌ وَّظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ مُبِينٌ ﴿١١٣﴾ وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوسٰى

(څوک) نیکوکار دی | او (څوک) ظالمان دی | په خپلو ځانونو باندِ | ښکاره | او بیشکه | مونږ احسان کړے وو | په موسیٰ

نیکان خلق هم دی او په خپلو ځانونو باندِ ښکاره ظلم کوونکی هم دی ۔ او مونږ په موسیٰ او په هارون هم

وَهٰرُونَ ﴿١١٤﴾ وَنَجَّيْنٰهُمَا وَقَوْمَهُمَا مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ ﴿١١٥﴾

او (په) هارون | او نجات ورکړو مونږ دِے دواړو ته | او دَ دوی قوم ته | له مصیبت | ډیر لوئے نه

احسان وکړو ۔ او دوئ دواړه مو سره دَ خپله قومه دَ لوئے مصیبت نه خلاص کړل ۔

وَنَصَرْنٰهُمْ فَكَانُوا هُمُ الْغٰلِبِينَ ﴿١١٦﴾ وَاٰتَيْنٰهُمَا الْكِتٰبَ

او مونږ مدد وکړو دَ دوی | پس وُو | دوی | غالب | او ورکړو مونږ دِے دواړو ته | یو کتاب

او مونږ دَ دوئ امداد وکړو نو دوئ (په فرعونیانو) غلبه بیاموندله ۔ او مونږ دِے دواړو له روښانه

الْمُسْتَبِينَ ﴿١١٧﴾ وَهَدَيْنٰهُمَا الصِّرٰطَ الْمُسْتَقِيمَ ﴿١١٨﴾ وَتَرَكْنَا

واضحه | او وُښودله مونږ دِے دواړو ته | لاره | سمه | او باقی پریښودله مونږ

کتاب ورکړو او مونږ دِے دواړو ته سمه لاره وُښودله او مونږ دِے دواړو دَ پاره

عَلَيْهِمَا فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿١١٩﴾ سَلٰمٌ عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿١٢٠﴾ اِنَّا

په دے دواړو | په وروستو خلقو کښے | سلام دِ وی | په موسیٰ | او هارونٔ | بیشکه مونږ

په وروستو راتلونکو خلقو کښے دا (ذکرِ خیر) باقی وُساتلو، چه په موسیٰ او هارونٔ دِ سلام وی ۔ بیشکه مونږ

كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٢١﴾ اِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٢٢﴾

دغه شان | بدله ورکوُو | نیکی کوونکو ته | بیشکه دوی دواړه ؤو | زمونږ له ایماندارو بندګانو نه

دغه شان نیکانو خلقو ته بدله ورکوُو ، دوئ دواړه زمونږ ایماندارهٔ بندګان ؤو ۔

وَاِنَّ اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٢٣﴾ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿١٢٤﴾

اوبیشکه | اِلیاس | له رسولانو نه وو | هرکله چه دهٔ ووئیل | خپل قوم ته | آیا تاسو ویریږئ نهٔ !

او الیاسٔ هم په پیغمبرانو کښے شامل دے ۔ څهٔ وخت چه هغهٔ خپل قوم ته ووئیل چه آیا تاسؤ الله نه نهٔ ویریږئ؟

اَتَدْعُوْنَ بَعْلًا وَّتَذَرُوْنَ اَحْسَنَ الْخٰلِقِيْنَ ﴿١٢٥﴾ اللّٰهَ رَبَّكُمْ

آیا بلئ تاسو | بعل (بت) | او تاسو پریږدئ | دَ ټولو نه ښهٔ | خالق | الله | چه رب دے ستاسو

آیا تاسو دَ بعل عبادت کوئ او خالق مو پریښودے دے چه ډیر ښکلے مخلوق ئے پیدا کړے دے ، یعنی الله چه ستاسو رب

وَرَبَّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿١٢٦﴾ فَكَذَّبُوْهُ فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ﴿١٢٧﴾

او رب دے | دَ پلارانو پخوانو ستاسو | پس دوی دروغژن وګڼړلو دے | نو بیشکه دوی به | ضرور حاضر کړے شی

دے او ستاسو دَ پلارو نیکهٔ هم رب دے ۔ هغوئ الیاسٔ دروغژن وګڼړلو نو ټول به راوو نیولے شی ۔

اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿١٢٨﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ

مګر | کوم چه بندګان دی | دَ الله | خالص کړی شوی | او پریښودله مونږ | په دهٔ باندِ (ثناء نیکه)

سیوا دَ هغه خلقو نه چه دَ الله تعالیٰ خاص بندګان دی ۔ او په راتلونکو خلقو کښے مونږ دَ هغهٔ په حقله

فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿١٢٩﴾ سَلٰمٌ عَلٰٓى اِلْ يَاسِيْنَ ﴿١٣٠﴾ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي

په وروستو خلقو کښے | (چه) سلام دِ وی | په الیاسٔ باندِ | بیشکه مونږ | دغه شان | بدله ورکوو

داخبره پریښوده چه په الیاسٔ دِ سلام وی یقینًا مونږ هم دغه شان نیکانو خلقو ته

الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٣١﴾ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٣٢﴾ وَاِنَّ لُوْطًا

نیکانو ته | بیشکه دے وو | زمونږ له نیکانو بندګانو نه | او بیشکه | لوطٔ (هم)

بدله ورکوو ۔ بیشکه هغه زمونږ (یو کامل) ایماندار بنده وو ۔ او بیشکه لوطٔ هم

لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٣٣﴾ اِذْ نَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ﴿١٣٤﴾

له رسولانو نه وو | هرکله چه خلاصے ورکړو مونږ دهٔ ته | او دَ دهٔ کوروالو | ټولو ته

له پیغمبرانو نه وو ۔ څهٔ وخت چه مونږ هغه او دَ هغهٔ تعلقداران ټول بچ کړل ۔ خو بس

اِلَّا عَجُوْزًا فِي الْغٰبِرِيْنَ ﴿١٣٥﴾ ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿١٣٦﴾ وَاِنَّكُمْ

سیوا دَ یوے بوډئ ښځے نه | چه دَ وروستو پاتے کیدونکو نه وه | بیا | مونږ هلاک کړل | نور خلق | او بیشکه تاسو

یوه بوډئ (هلاکه شوه) چه په وروستو پاتے کیدونکو کښے وه ، بیا مو نور ټول خلق تباه کړل ۔ او تاسو خلق

لَتَمُرُّوْنَ عَلَيْهِمْ مُّصْبِحِيْنَ ﴿١٣٧﴾ وَبِالَّيْلِ ۚ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿١٣٨﴾ وَاِنَّ

تیریږئ | په دوئ باندې | دَ سحر په وخت | او په وخت دَ شپې هم | پس آیا تاسو عقل نهٔ لرئ | او بیشکه

دَ هغوئ په علاقو تیریږئ ، دَ سحر هم او دَ شپې هم نو آیا تاسو دومره نهٔ پوهیږئ؟ او

يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿١٣٩﴾ اِذْ اَبَقَ اِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ﴿١٤٠﴾

یونسؑ (هم) | له پیغمبرانو نه وو | هرکله چه وُتښتیدو دے | طرف دَ کشتئ ته | چه ډکه شوے وه.

یونسؑ هم یو پیغمبر وو ، څهٔ وخت چه وتښتیدو (او یوے) ډکے کشتئ ته ورسیدو.

فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِيْنَ ﴿١٤١﴾ فَالْتَقَمَهُ الْحُوْتُ وَهُوَ

پس قرعه ئے واچوله | پس شو دے | له مغلوبانو نه | پس لوا تیر کړو دے | کب | او دے وو

نو په هسک کښے شریک شو نو ملزم شو. بیا دے یو مهی لوا تیر کړو او (حال دا وو) چه

مُلِيْمٌ ﴿١٤٢﴾ فَلَوْلَآ اَنَّهٗ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ ﴿١٤٣﴾ لَلَبِثَ فِيْ بَطْنِهٖٓ

پښیمانه | پس که چرے نهٔ وے | (دا خبره) چه دے وو | له تسبیح کوونکو نه | نو پاتے شوے به وو دے | دَ هغے په خیټه کښے

دے (سخت) پښیمانه وو. بیا که چرے دے دَ الله تعالیٰ تسبیح کوونکے نهٔ وے نو دَ دغه مهی په خیټه کښے به

اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ﴿١٤٤﴾ فَنَبَذْنٰهُ بِالْعَرَآءِ وَهُوَ سَقِيْمٌ ﴿١٤٥﴾

تر هغې ورځے پورے | (چه پکښے) به خلق راپاڅولے شي | پس واچولو مونږ دے | په میدان کښے | او دے وو | بیمار.

تر قیامته پروت وو. نو مونږ دے په یو هوار میدان کښے واچولو چه ډیر کمزورے شوے وو.

وَاَنْۢبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِّنْ يَّقْطِيْنٍ ﴿١٤٦﴾ وَاَرْسَلْنٰهُ

او را وُتوکوله مونږ | په دهٔ باندې | یوه اُونه | زیلئ داره (کدو) | او | وُلیږلو مونږ دے

او مونږ په دهٔ باندې یوه زیلئ داره اُونه راز شنه کړه. او مونږ دے یو لک

اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ اَوْ يَزِيْدُوْنَ ﴿١٤٧﴾ فَاٰمَنُوْا فَمَتَّعْنٰهُمْ اِلٰى حِيْنٍ ﴿١٤٨﴾

سلو زرو (یو لک خلقو) ته | یا دَ دے نه زیات | پس دوی ایمان راوړو | نو مونږ فائده ورکړه دوئ ته | تر خهٔ موده پورے

یا دَ دے نه زیاتو خلقو طرف ته لیږلے وو، نو دوئ ایمان راوړو پس مونږ دوئ ته یو مقرر وخت پورے موقع ورکړه

فَاسْتَفْتِهِمْ اَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ وَلَهُمُ الْبَنُوْنَ ﴿١٤٩﴾

پس تپوس وکړه له دوئ نه | آیا ستا دَ رب دَ پاره | لونړه دي | او | دوی دَ پاره | ځامن ؟

نو اوس دَ دوئ نه تپوس وکړه چه آیا ستا دَ رب لونړه دي او دَ دوئ دَ پاره ځامن ؟

اَمْ خَلَقْنَا الْمَلٰٓئِكَةَ اِنَاثًا وَّهُمْ شٰهِدُوْنَ ﴿١٥٠﴾ اَلَآ

یا مونږ پیدا کړی دي | فرښتے | ښځے | او دوئ | ګواه وو | داوُره!

آیا مونږ فرښتے ښځے پیدا کړی دي او دوئ هلته موجود وو (کتل ئے ورته)؟ اے پیغمبرهٔ!

اِنَّهُمْ مِّنْ اِفْكِهِمْ لَيَقُوْلُوْنَ ﴿١٥١﴾ وَلَدَ اللّٰهُ ۙ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿١٥٢﴾

بیشکه دوی | له خپلے دروغ ویناته | وائی | (چه) اولاد دے | دَ الله | او بیشکه دوی | دروغژن دي

نهٔ داوُره! دوئ یقینًا دروغ وائی چه دَ الله تعالیٰ اولاد دے او دوئ بالکل دروغ وائی.

أَصْطَفَى الْبَنَاتِ عَلَى الْبَنِينَ ﴿١٥٣﴾ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴿١٥٤﴾

آیا دهٔ خوښے کړے | لونړه | په ځامنو | په تاسو څهٔ شوی دی؟ | څنګه | تاسو فیصله کوئ؟

آیا دَ الله تعالیٰ دَ ځامنو په مقابله کښے لونړه زیاتے خوښے دی، دا په تاسو څهٔ شوی دی دا څنګه (غلط) حکمونه لګوئ؟

أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿١٥٥﴾ أَمْ لَكُمْ سُلْطَانٌ مُبِينٌ ﴿١٥٦﴾ فَأْتُوا بِكِتَابِكُمْ

پس آیا تاسو غور نهٔ کوئ؟ | یا تاسو سره | (څهٔ) دلیل دے | ښکاره | پس راوړئ | خپل کتاب

بیا تاسو ولے نهٔ پوهیږئ؟ آیا تاسو سره (په دے خبرو) څهٔ څرګند دلیل شته؟ نو (هغه) خپل (زوړ) کتاب مو

إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٥٧﴾ وَجَعَلُوا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا

که چرے یئ تاسو رښتینی | او دوئ مقرر کړله | په مینځ دَ الله | او په مینځ دَ پیریانو کښے | یوه رشته

راوړاندِ کړئ که تاسو رښتینی یئ؟ او دوئ دَ الله تعالیٰ او دَ پیریانو ترمینځه (هم یوه) خپلوی جوړه کړے ده

وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ ﴿١٥٨﴾ سُبْحَانَ اللَّهِ

او بیشکه پوهه دی | پیریان | چه بیشکه دوی به | حاضروے شی | پاک دے | الله

او په خپله دَ پیریانو خو دا عقیده ده چه هغوئ به راښوے شی - (یاد ساتئ چه) الله تعالیٰ دَ هغه خبرو

عَمَّا يَصِفُونَ ﴿١٥٩﴾ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴿١٦٠﴾

له هغه څهٔ نه | چه دوی ئے بیانوی | مګر | کوم چه بندګان دی | دَ الله | خالص

نه پاک دے کوم چه دا خلق بیانوی، سیوا دَ هغه خلقو نه چه دَ الله تعالیٰ خالص بندګان دی۔

فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ ﴿١٦١﴾ مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ ﴿١٦٢﴾

پس بیشکه تاسو | او هغه څهٔ | چه تاسو ئے عبادت کوئ | نهٔ یئ تاسو | دَ الله نه | اړووُنکی

پس تاسو او ستاسو ټول معبودان (چه راغونډ شی نو) هیڅوک دَ الله تعالیٰ نه اړولے نهٔ شی -

إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ ﴿١٦٣﴾ وَمَا مِنَّا إِلَّا لَهُ

مګر | هغه څوک چه | هغه ننوتونکے وی | دوزخ کښے | او نشته | له مونږ نه (هیڅوک) | مګر | دَ هغهٔ

سیوا دَ هغه کس نه چه جهنم ته تلونکے دے - او (فرښتے وائی چه) په مونږ کښے هر یو تن له یوه

مَقَامٌ مَعْلُومٌ ﴿١٦٤﴾ وَإِنَّا لَنَحْنُ الصَّافُّونَ ﴿١٦٥﴾ وَإِنَّا لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُونَ ﴿١٦٦﴾

ځائے | معلوم دے | او بیشکه مونږ | صف تړونکی یو | او بیشکه مونږ | تسبیح ویونکی یو

مقرره درجه مقرره ده، او مونږ ټول په صف کښے (په ادب) ولاړ یو او مونږ ټول دَ هغهٔ پاکی بیانوو

وَإِنْ كَانُوا لَيَقُولُونَ ﴿١٦٧﴾ لَوْ أَنَّ عِنْدَنَا ذِكْرًا مِنَ الْأَوَّلِينَ ﴿١٦٨﴾

او بیشکه | دوی (کافرانو) به وئیل | که چرے وے | مونږ سره | کتاب | دَ پخوانو خلقو -

او دِے خلقو (یعنی دَ مکے کافرانو) به وئیل که مونږ ته دَ پخوانو خلقو غوندِ یو (د) نصیحت (کتاب) راغلے وے -

لَكُنَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴿١٦٩﴾ فَكَفَرُوا بِهِ

نو مونږ به وُو | بندګان | دَ الله | خاص | پس دوی انکار وکړو | دَ دِے (قرآن)

نو مونږ به ضرور دَ الله تعالیٰ خاص بندګان وو - بیا دوی دَ دِے (قرآن) نه انکار وُکړو

فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۷۰﴾ وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۷۱﴾

نو ژر به | دوی پوهه شی | او له وړاندې نه مقرر شوے دے | زمونږ حکم | زمونږ د بندګانو (په حق کښے) | چه پیغمبران دی۔

نو ژر به ورته حال معلوم شی۔ او زمونږ پیغمبرانو بندګانو له زمونږ دا خبره د پخوانه مقرر شوے ده چه

اِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُوْرُوْنَ ﴿۱۷۲﴾ وَاِنَّ جُنْدَنَا لَهُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿۱۷۳﴾ فَتَوَلَّ

چه بیشکه هم دوی دی | چه مدد دیه ورکولے شی | او بیشکه | لښکر زمونږ | هم دا دے | غالب | پس ته مخ واړوه

هم د دوی به مدد کولے شی۔ او هم زمونږ لښکر به غالب راځی۔ نو ترڅه موده پورے

عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۱۷۴﴾ وَّاَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۷۵﴾ اَفَبِعَذَابِنَا

له دوی نه | ترڅهٔ موده | او ګوره دوی ته | پس ژر به | دوی (هم) وګوری | پس آیا زمونږ عذاب

د دوی د خبرو پروا مهٔ ساته۔ او لږ د دوی حال ته ګوره دوی به پخپله هم ژر (خپل انجام) وګوری، آیا دوی زمونږ

يَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿۱۷۶﴾ فَاِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿۱۷۷﴾

دوی ژر غواړی | نو هر کله چه | هغه نازل شی | د دوی په میدان کښے | نو بد به وی | سحر | د دغه ویرولی شوو

عذاب ژر غواړی۔ نو څهٔ وخت چه دغه عذاب د دوی په میدان کښے راکوز شی نو د ویرولی شوو خلقو د پاره به هغه سحر ډیر خراب سحر وی

وَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۱۷۸﴾ وَّاَبْصِرْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۷۹﴾

او مخ واړوه | له دوی نه | ترڅهٔ موده | او ګوره | نو ډیر ژر به | دوی (هم) وګوری

او ته ترڅهٔ موده پورے د دوی پروا مهٔ ساته او دوی ته ګوره دوی به ډیر ژر (د) خپل عمل (نتیجه) ووینی

سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿۱۸۰﴾

پاک دے | رب ستا | چه رب دے | د عزت والا | له هغه څهٔ نه | چه دوی ئے بیانوی

ستا رب چه د عزت خاوند دے، د دوی د بیان کړو خبرو نه پاک دے۔

وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۸۱﴾ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۸۲﴾

او سلام دِ وی | په پیغمبرانو | او ټول تعریفونه | الله د پاره دی | چه رب دے | د ټولو جهانونو

او په ټولو پیغمبرانو دِ سلام وی، او ټول تعریفونه الله تعالیٰ لره دی چه د ټولو جهانونو رب دے۔

| سُوْرَةُ صٓ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ ثَمَانٍ وَّ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ثَمَانُوْنَ اٰيَةً وَّخَمْسُ رُكُوْعَاتٍ |
| --- | --- | --- |
| سورهٔ صٓ په مکه کښے نازل شوه او | (شروع) د الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۸۸ آیتونه او ۵ رکوعګانے دی |

د الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم خاوند دے۔

صٓ وَالْقُرْاٰنِ ذِى الذِّكْرِ ﴿۱﴾ بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِىْ عِزَّةٍ

صٓ۔ | قسم دے په قرآن | چه نصیحت ورکوونکے دے | بلکه | کوم خلق چه | منکر دی هغوئی | په تکبر کښے

صٓ۔ په قرآن باندِ قسم کے چه د نصیحت نه ډک (کتاب) دے، بلکه دا کافران تش په غرور او په مخالفت کښے (لوښتی)

وَّشِقَاقٍ ﴿۲﴾ كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ فَنَادَوْا وَّلَاتَ

او مخالفت (کښے پراته دی) | څومره | مونږ هلاک کړل | له دوی نه وړاندِ | قومونه | پس فریاد به ئے کړو دوی | او نهٔ وو پلټ

پراته دی۔ د دوی نه وړومبے مونږ ډیر امتونه هلاک کړی دی نو هغوئی ډیرے نعرے سورے وهلے

حِينَ مَنَاصٍ ﴿٣﴾ وَعَجِبُوٓا أَن جَآءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ

وخت | دَخلاصى | او دوى تعجب وكړو | چه | راغے دوى ته | ويرُونكے | له دوى نه

دَخلاصى وخت پرے تيرشوے وو او دوی په دے خبره تعجب وکړو چه هم له دوئ نه يو ويرُونکے (نبى) راغلے دے

وَقَالَ الْكَٰفِرُونَ هَٰذَا سَٰحِرٌ كَذَّابٌ ﴿٤﴾ أَجَعَلَ الْآلِهَةَ

او وئيل | كافرانو | چه دے (خو) | يو جادوگر دے | دروغژن | آيا جوړكړل دهٔ | ډيرمعبودان

او كافرانو ووئيل چه دا خو يو دروغژن جادوگر دے. ښه! دهٔ دَدومره ډيرو خدايانو په

إِلَٰهًا وَاحِدًا ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ ﴿٥﴾ وَانطَلَقَ الْمَلَأُ

صرف يو معبود ؟ | بيشكه | دا (خو) | يو شيز دے | عجيبه | او روان شول | سرداران

ځائے هيله يو خدائے باقى پاتے كړو؟ داخو ډيره نا آشنا خبره ده او دَدوئ مشرانو په تلوتلو كښے

مِنْهُمْ أَنِ امْشُوا وَاصْبِرُوا عَلَىٰ آلِهَتِكُمْ ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ

له دوى نه | چه | لاړ شئ | او ټينګ وُسيږئ | په خپلو معبودانو | بيشكه | دا | يوه خبره ده

ووئيل چه تاسو لاړ شئ ، او په خپلو معبودانو ټينګ ولاړ وُسيږئ ، په دے كښے (دَدے سړى) ضرور

يُرَادُ ﴿٦﴾ مَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ إِنْ هَٰذَا إِلَّا

دَغرض | نهٔ ده آورېدلے مونږ | دا خبره | په دين | دروستنى كښے | نهٔ ده | دا خبره | مګر

دَهٔ مطلب خبره ده ، مونږ خو دا خبره هيچرے په زوړ مذهب كښے اَوُريدلے نهٔ ده، دا خو بس ځان نه جوړه

اخْتِلَاقٌ ﴿٧﴾ أَأُنزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِن بَيْنِنَا ۚ بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ

له ځان نه جوړه شوے | آيا نازل شو | په دهٔ باندې | قرآن | زمونږ له مينځ نه | (نه) بلكه دوى | په شك كښے دى

شوے خبره ده ، آيا په مونږ ټولو كښے هيله په دهٔ باندې دَالله تعالى كلام نازل شوے دے؟ (الله فرمائى چه نه) بلكه دوئ

مِّن ذِكْرِي ۖ بَل لَّمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ ﴿٨﴾ أَمْ عِندَهُمْ خَزَائِنُ

زما له نصيحت نه | (نه) بلكه | لا نهٔ دے څکلے دوى | زما عذاب | يا | دوى سره | خزانے دى

تهٔ زما په نصيحت كښے شك دے بلكه (تراوسه) دوئ زما دَعذاب مزه نهٔ ده څکلے. آيا دوئ سره ستا دَ زبردست

رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيزِ الْوَهَّابِ ﴿٩﴾ أَمْ لَهُم مُّلْكُ السَّمَاوَاتِ

دَرحمت | ستا دَرب | چه ډير غالب | ډير وركوونكے دے | يا | دوى دَپاره | بادشاهت | دَآسمانونو

عطا كوونكى رب خزانے دى ؟ آيا دوئ ته دَآسمانونو او دَمزكے او دَ دوى ترمينځ

وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَابِ ﴿١٠﴾ جُندٌ مَّا هُنَالِكَ

او زمكے (دے) | او څهٔ چه دَدوى مينځ كښے دى | نو دوى دے دُ خيږى | انبتلى په رسو | يو لښكر دے | كوم چه په | هلته

دَ ځيزونو واک اختيار حاصل دے؟ كه دا داسے وى نو بيا دوئ له پكار دى چه دَ پړو په ذريعه (آسمان ته) وُختيږی دا هم دَخلقو يو ډله ده

مَهْزُومٌ مِّنَ الْأَحْزَابِ ﴿١١﴾ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ

شكست خورى | له ډلے نه | دروغژن ګنړلے وو | له دوئ نه وړاندې | قوم | دَنوح | او عاد

كوم ته چه به دَ توره ډلو دَ طرف نه شكست وى ، دَدوئ نه وړاندې دَ نوح قوم او عاديانو او فرعون چه موګئے تکوهلی

وَفِرْعَوْنُ ذُو الْأَوْتَادِ ﴿۱۲﴾ وَثَمُودُ وَقَوْمُ لُوطٍ وَأَصْحَابُ لْـَٔيْكَةِ ۚ أُولَٰئِكَ

او فرعون | او میخونو والا | او ثمودیانو | او قوم دَ لوط ؑ | او دَ بنړ اُوسیدونکو | هم دادی هغه

دو ، او ثمودیانو او دَ لوط ؑ قوم او دَ بنړ اُوسیدونکو هم خپل پیغمبران دروغژن گڼلی وو ، هم دالوئے لو

الْأَحْزَابُ ﴿۱۳﴾ إِنْ كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ ﴿۱۴﴾

لښکرے | دے ټولو دروغژن گڼلی وو | پیغمبران | پس راپریوتو | زما عذاب

ډلے وے ، دوئ ټولو خپل رسولان دروغژن گڼلی وو ، نو زما دَ عذاب مستحق شول .

وَمَا يَنْظُرُ هَٰؤُلَاءِ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً مَا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ ﴿۱۵﴾

او انتظار نهٔ کوی | دا خلق | مگر | دَ یوے درنے چغے | چه نشته دَ هغے | هیڅ وقفه

او دا خلق صرف دَ یوے درنے چغے انتظار کوی چه دَ هغے په مینځ کښے به هیڅ وقفه نهٔ وی

وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّلْ لَنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ ﴿۱۶﴾ اصْبِرْ

او دوی دوئیل | اَے زمونږ ربه! | ژر راکړه | مونږ ته | زمونږ حصه | وړاندې | له ورځے دَ حساب نه | صبر وکړه

او دا خلق (دَ خندا نه) وائی چه اے زمونږه ربه! دَ حساب دَ ورځے نه وړاندې ژر مونږ له زمونږ حصه راکړه . ته دَ دوئ په دَ خبرو

عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُودَ ذَا الْأَيْدِ ۖ إِنَّهُ أَوَّابٌ ﴿۱۷﴾

په هغه څهٔ | چه دوی ئے وائی | او یاد کړه | زمونږ بنده | داؤد | چه ډیر طاقت ورو و | بیشکه دے | رجوع کوونکے وو

صبر کوه ، او زمونږ بنده داؤد رایاد کړه چه ډیر طاقت والا وو او بیا بیا ئے الله تعالیٰ ته رجوع کوله

إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ﴿۱۸﴾ وَالطَّيْرَ

بیشکه مونږ | تابع کړی وو | غرونه | دَ دهٔ سره | چه تسبیح به کوله دوی | دَ ماښام | او د سحر | او مارغان (هم)

مونږ غرونه تابع کړی وو چه سحر او ماښام به ئے دَ دهٔ سره تسبیح کوله . او مارغان به هم

مَحْشُورَةً ۖ كُلٌّ لَهُ أَوَّابٌ ﴿۱۹﴾ وَشَدَدْنَا مُلْكَهُ وَآتَيْنَاهُ

چه راجمع کیدل به | دوی ټول | دهٔ ته | رجوع کوونکی وو | او مونږ مضبوطه کړے وه | دَ دهٔ بادشاهی | او مونږ ورکړے وه دهٔ ته

دَ دهٔ سره جمع کیدل او تسبیح به ئے کوله دا ټول دَ دهٔ دَ فرمان تابع وُو او مونږ دَ دهٔ حکومت ډیر مضبوط کړے وو او مونږ دهٔ ته

الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ﴿۲۰﴾ وَهَلْ أَتَاكَ نَبَأُ الْخَصْمِ

حکمت | او فیصله کول | دَ خبرے | او آیا | راغلے دے تا ته | خبر | دَ جگړه کوونکو

حکمت او فیصله کوونکے تقریر ورښلے وو . او (اے پیغمبره!) آیا تا ته دَ هغه دعویدارو خبره معلومه ده

إِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ ﴿۲۱﴾ إِذْ دَخَلُوا عَلَىٰ دَاوُودَ فَفَزِعَ مِنْهُمْ ۖ قَالُوا

هر کله چه هغوئ په دیوال راواوړیدل | جُومات ته | هر کله چه هغوئ دننه راغلل | داؤد ته | نو دے وویریدلو | له دوئ نه | دوی دوئیل

چه هغوئ په دیوال راواوړیدل او په عبادت خانه کښے داخل شول هر کله چه داؤد له راغلل نو دے ترے وویریدو هغوئ ورته ووئیل

لَا تَخَفْ ۖ خَصْمَانِ بَغَىٰ بَعْضُنَا عَلَىٰ بَعْضٍ فَاحْكُمْ بَيْنَنَا

مهٔ ویریږه | دوه جګړے والا یو | چه زیاتے وکړو | له مونږ نه یو | په بل باندې | نو ته فیصله وکړه | زمونږ په مینځ کښے

چه مهٔ ویریږه ، مونږه دوه معامله دار یُو چه په معامله کښے مو لاندے باندے راغلے دے نو زمونږ ترمینځه په انصاف

بِالْحَقِّ وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَآ اِلٰى سَوَآءِ الصِّرَاطِ ﴿۲۲﴾ اِنَّ هٰذَآ اَخِىْ

په انصاف | او بې انصافي مه کوه | او مونږ ته وښايه | سمه لاره | بېشکه | دا | زما ورور دے

فیصله وکړه او فرق مه ساته ، او مونږ ته سمه لاره وښايه ، دا سړے زما ورور دے ،

لَهٗ تِسْعٌ وَّتِسْعُوْنَ نَعْجَةً وَّلِىَ نَعْجَةٌ وَّاحِدَةٌ فَقَالَ اَكْفِلْنِيْهَا

د ده سره | نهه نوی (۹۹) | ګډې دي | او ما سره ګډه ده | صرف یوه | پس ده ووئيل | هغه ما ته وسپاره

چه د ده سره یو کم سل ګډې دي ، او ما سره یوه ګډه ده ، نو دے ما ته وائی چه دغه یوه هم ماله راکړه

وَعَزَّنِىْ فِى الْخِطَابِ ﴿۲۳﴾ قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ

او سختي وکړه ده په ما | په خبره کولو کښې | داؤد ووئيل | يقيناً | ده ظلم وکړو په تا | په غوښتلو | ستا د ګډې

او په خبرو کښې راباندې برغلبه دے ۔ داؤد ورته ووئيل ، دے چه ستا ګډه په خپلو ګډو کښې یوځائے کول غواړی نو دا

اِلٰى نِعَاجِهٖ ۖ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ الْخُلَطَآءِ لَيَبْغِىْ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ

خپلو ګډو (کښې یوځائے کولو) د پاره | او بېشکه | ډېر | شريکان | ظلم کوی | په يو بل باندې

واقعی په تا زياتے کوی ، او (هم دغسے) اکثر شريکان په يو بل باندې زياتے کوی ، خو

اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَقَلِيْلٌ مَّا هُمْ ۗ وَظَنَّ

مګر | هغه خلق چه | ايمان ئے راوړے دے | او عمل ئے وکړو | نيک | او لږ دي | دا سې خلق | او خيال وکړو

ځوک چه ايماندار دي او نيک کارونه کوی (هغوئی زياتے نه کوی) او داسې کسان ډېر لږ دي ، او داؤد دا

دَاوٗدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ وَخَرَّ رَاكِعًا وَّ اَنَابَ ﴿۲۴﴾ السجدة

داؤد | چه مونږ آزميښت وکړو په ده | پس ده معافي وغوښتله | د خپل رب نه | او پرېوتلو | په رکوع کښې | او | رجوع ئے وکړه

خيال وکړو چه مونږ د هغه امتحان اخستے دے نو خپل رب نه ئے توبه ووېستله او په سجده پرېوتلو او خدائے ته ئے رجوع وکړه

فَغَفَرْنَا لَهٗ ذٰلِكَ ۗ وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ

نو مونږ معاف کړه | د ده | دا خبره | او بېشکه | ده د پاره | مونږ سره | نزدې والے دے | او | ښه

نو مونږ ورته د دغې خبرے معافي وکړه او هغه مونږ ته نزدے دے او انجام ئے ډېر ښه

مَاٰبٍ ﴿۲۵﴾ يٰدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِى الْاَرْضِ فَاحْكُمْ

ځائے د ورتلو | اے داؤد ! | بېشکه مونږ | ته جوړ کړے | خليفه | په زمکه کښې | پس فيصله وکړه

دے ۔ اے داؤده ! مونږ ته په زمکه حاکم کړے يې ، نو د خلقو ترمينځه

بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ

د خلقو په مينځ کښې | په انصاف سره | او پيروی مه کوه | د خواهش | پس هغه به ګمراه کړی تا | د لارے نه

په انصاف سره فيصله کوه او په خپلو خواهشونو پسے هيڅکله مه ځه کنی د الله د لارے نه به دې لارے

اللّٰهِ ۗ اِنَّ الَّذِيْنَ يَضِلُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ

د الله | بېشکه | هغه کسان | چه ګمراه شول | د الله د لارے نه | هغوئی د پاره | عذاب دے

کړی ، ځوک چه د الله د لارے نه بے لارے شی ، هغوئی له سخت عذاب مقرر

شَدِيدٌۢ بِمَا نَسُوا۟ يَوْمَ ٱلْحِسَابِ ﴿٢٦﴾ وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَآءَ وَٱلْأَرْضَ

سخت | په سبب دَ هغې | چه هېره کړه دوی | ورځ دَ حساب | او نه دی پیدا کړی مونږ | آسمان | او زمکه

دے ځکه چه دَ حساب ورځ ئے هېره کړے وه ۔ او مونږ آسمان او زمکه او دَ دے دواړو په مینځ کښے

وَمَا بَيْنَهُمَا بَٰطِلًا ۚ ذَٰلِكَ ظَنُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ

او څه چه | دَ دوی په مینځ کښے دی | بے کاره | دا خو | خیال دے | دَ هغه کسانو | چه کافران دی | پس هلاکت دے دَ هغو دپاره

څیزونه بے مطلبه نه دی پیدا کړی ، دا خو دَ هغه چا گمان دے چه کافران دی ، نو کافرانو له عنقریب لویه بربادی

كَفَرُوا۟ مِنَ ٱلنَّارِ ﴿٢٧﴾ أَمْ نَجْعَلُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ

چه منکر دی | له عذاب دَ اور نه | آیا کړو مونږ | هغه کسان چه | ایمان ئے راوړے دے | او هغوی عمل وکړو | نیک

مقرر ده چه (دَ دوزخ) اور دے ۔ آیا مونږ به دَ ایمان او دَ نیک عمل خاوندان دَ هغه چا سره برابر کړو چه

كَٱلْمُفْسِدِينَ فِى ٱلْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ ٱلْمُتَّقِينَ كَٱلْفُجَّارِ ﴿٢٨﴾ كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ

په شان دَ فساد کوونکو | په زمکه کښے | یا کړو مونږ | پرهیزگاران | په شان دَ بدکارانو | دا کتاب دے | چه نازل کړو مونږ

په ملک کښے فسادونه خوروی ، آیا مونږ به پرهیزگاران دَ بدکارو سره یو شان گڼړو ؟ دا (قرآن) یو

إِلَيْكَ مُبَٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوٓا۟ ءَايَٰتِهِۦ وَلِيَتَذَكَّرَ أُو۟لُوا۟ ٱلْأَلْبَٰبِ ﴿٢٩﴾ وَوَهَبْنَا

په تا باندې | برکت والا دے | چه دوی غور وکړی | دَ دے په آیتونو کښے | او چه نصیحت حاصل کړی | عقل والا | او ورکړو مونږ

برکتی کتاب دے چه مونږ په تا په دے غرض نازل کړے دے چه دوی دَ دے په آیتونو کښے فکر وکړی او عقلمند ترے نه نصیحت حاصل کړی او مونږ

لِدَاوُۥدَ سُلَيْمَٰنَ ۚ نِعْمَ ٱلْعَبْدُ ۖ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ ﴿٣٠﴾ إِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ

داؤد ته | سلیمان | ښه بنده وو | بیشکه هغه | رجوع کوونکے وو | هر کله چه پیش کړے شول | دَ هٔ ته

داؤد ته (ځوئے) سلیمان عطا کړو چه ډیر ښه بنده وو او (الله ته) ډیر رجوع کوونکے وو ، هغه واقعه را یاده کړه چه په ماښام کښے هغه

بِٱلْعَشِىِّ ٱلصَّٰفِنَٰتُ ٱلْجِيَادُ ﴿٣١﴾ فَقَالَ إِنِّىٓ أَحْبَبْتُ حُبَّ ٱلْخَيْرِ

په ماښام کښے | اصیل اسونه | تیز رفتار | نو دهٔ ووئیل | بیشکه ما | خوښ کړو | دَ مال محبت

ته اصیل ښهٔ اسونه پیش کړے شول ۔ نو هغهٔ ووئیل چه زهٔ دَ مال په محبت کښے دَ خپل رب دَ یاد ولو نه غافله

عَن ذِكْرِ رَبِّى حَتَّىٰ تَوَارَتْ بِٱلْحِجَابِ ﴿٣٢﴾ رُدُّوهَا عَلَىَّ ۖ فَطَفِقَ

دَ خپل رب په یاد باندې | تر دے چه | پټ شو (نمر) | په پرده کښے | را واپس کړئ هغه | ما ته | پس شروع وکړه دهٔ

پاتے شوم ، تر دے چه نمر (دَ مغرب) په پرده کښے پټ شو ۔ دا (اسونه) خو لږ را واپس کړئ ۔ او هغهٔ دَ هغوی

مَسْحًۢا بِٱلسُّوقِ وَٱلْأَعْنَاقِ ﴿٣٣﴾ وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَٰنَ وَأَلْقَيْنَا

په لاس رسولو | دَ هغوی پنډو | او څټونو ته | او بیشکه مونږ آزمیښت وکړو | په سلیمان | او واچولو مونږ

په پنډو او څټونو د هلو شروع وکړه ۔ او مونږ سلیمان په یو آزمیښت کښے واچولو او دَ هغهٔ په

عَلَىٰ كُرْسِيِّهِۦ جَسَدًا ثُمَّ أَنَابَ ﴿٣٤﴾ قَالَ رَبِّ ٱغْفِرْ لِى وَهَبْ لِى

په تخت دَ دهٔ | یو نیمگړے جسم | بیا دهٔ رجوع وکړه | وُئے ووئیل اے زما ربه | بخښنه وکړه ما ته | او عطا کړه | ما ته

تخت مو یو نیمگړے جسم واچولو ، نو بیا هغهٔ (الله ته) رجوع وکړه ، دهٔ دُعا وکړه چه اے زما ربه ! ما ته معافی وکړه او دا سے

مُلْكًا لَّا يَنۢبَغِي لِأَحَدٍ مِّنۢ بَعْدِيٓ ۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْوَهَّابُ ﴿٣٥﴾ فَسَخَّرْنَا

بادشاهي | چه حاصله نه شي | هيچا ته | پس له مانه | بيشکه ته | ډير زيات بخښنه کوونکے یې | پس مونږ تابع کړله

بادشاهي راته راکړه چه زمانه بغير (په دے زمانه کښے) بل هيچا ته حاصله نه شي بيشکه ته ډير زيات بخښنه کوونکے یې، نو مونږ باد ته

لَهُ ٱلرِّيحَ تَجْرِي بِأَمْرِهِۦ رُخَآءً حَيْثُ أَصَابَ ﴿٣٦﴾ وَٱلشَّيَـٰطِينَ

دهٔ د پاره | هوا | چه تله به | د دهٔ په حکم | په نرمئ | چرته چه به | دهٔ تلل غوښتل | او ديوان

د هغهٔ تابع کړل چه د هغهٔ په حکم په قابو دننه الوتل کم خوا چه به د هغهٔ خوښه وه، او ټول عمارت جوړوونکی

كُلَّ بَنَّآءٍ وَغَوَّاصٍ ﴿٣٧﴾ وَءَاخَرِينَ مُقَرَّنِينَ فِي ٱلْأَصْفَادِ ﴿٣٨﴾ هَـٰذَا

چه ټول عمارت جوړوونکی | او غوپه وهونکی وو | او نور (ديوان) | چه تړلی به پرانهٔ وو | په زنځيرونو کښے | دا دے

او غوپه وهونکی پيريان مو د هغهٔ تابع کړل او نور پيريان هم چه په زنځيرونو کښے به تړلی پراتهٔ وو دا زمونږ

عَطَآؤُنَا فَٱمْنُنْ أَوْ أَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٩﴾ وَإِنَّ لَهُۥ عِندَنَا

زمونږ بخښش | پس ورکړه کوے | او که ئے خان سره ږدے | بغير | د حساب نه | او بيشکه دهٔ د پاره | مونږ سره

درکول دی نو که ئے چاله ورکړه کوے او که ئے نه کوے ستا نه به د دے هيڅ پتوس پوښتنه نه کيږی. او هغه مونږ ته ډير نزدے

لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَـَٔابٍ ﴿٤٠﴾ وَٱذْكُرْ عَبْدَنَآ أَيُّوبَ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥٓ

نزديوالے | او ښهٔ ځائے د ورتلو دے | او ياد کړه | زمونږ بنده | ايوب | هرکله چه | دهٔ آواز وکړو | خپل رب ته

دے او انجام ئے ډير ښهٔ دے. او زمونږ بنده ايوب را ياد کړه، څهٔ وخت چه هغهٔ خپل رب ته آواز وکړو

أَنِّي مَسَّنِيَ ٱلشَّيْطَـٰنُ بِنُصْبٍ وَعَذَابٍ ﴿٤١﴾ ٱرْكُضْ بِرِجْلِكَ ۖ هَـٰذَا

چه رسولے دے ماته | شيطان | تکليف | او عذاب | وُوهه (په زمکه) | خپله ښپه | دا

چه شيطان زهٔ په رنځ او په آزار اخته کړے يم (جواب ورته وُشو چه) ته خپله ښپه په زمکه وُوهه (او واخله

مُغْتَسَلٌۢ بَارِدٌ وَشَرَابٌ ﴿٤٢﴾ وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ أَهْلَهُۥ وَمِثْلَهُم

د غسل اوبهٔ دی | يخے | او د څښلو | او مونږ ورکړل | دهٔ ته | د دهٔ د کور خلق | او په شان د دوی (نور)

دا يوه يخه چينه (راوتلے) ده د لامبلو او څښلو د پاره. او مونږ ورته ټوله خپلخانه پسته وُبخښله او د هغوئ هومره ورسره

مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنَّا وَذِكْرَىٰ لِأُو۟لِي ٱلْأَلْبَـٰبِ ﴿٤٣﴾ وَخُذْ بِيَدِكَ

د دوی سره | په خپل رحمت سره | او په طور د نصيحت | عقلمندو د پاره | او واخله | په خپل لاس کښے

نور ، دا زمونږ مهربانی وه او د عقلمندو د پاره د عبرت سبق وو او (اے ايوبه!) ته په خپل لاس کښے يو

ضِغْثًا فَٱضْرِب بِّهِۦ وَلَا تَحْنَثْ ۗ إِنَّا وَجَدْنَـٰهُ صَابِرًا ۚ نِّعْمَ

يوموټے ډکی | بيا وُوهه | په دے سره | او قسم مهٔ ماتوه | بيشکه مونږ | بيا موندو دے | صابره | دے ځنګه ښهٔ

موټے ډکی واخله او په دے (خپله بی بی) ووهه او قسم مهٔ ماتوه ، مونږ واقعی هغه ډير صابره بيا موندو ، هغه ډير ښهٔ

ٱلْعَبْدُ ۖ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ ﴿٤٤﴾ وَٱذْكُرْ عِبَـٰدَنَآ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَـٰقَ وَيَعْقُوبَ

بنده وو | بيشکه دے ډير رجوع کوونکے وو | او ياد کړه | بندګان زمونږ | ابراهيمؑ | او اسحاقؑ | او يعقوبؑ

بنده وو ، او مونږ ته ډير رجوع کوونکے وو. او زمونږ بندګان ابراهيمؑ ، اسحاقؑ او يعقوبؑ را ياد کړه.

ع ٤ ‏ وقف لازم

أُولِي الْأَيْدِي وَالْأَبْصَارِ ﴿٤٥﴾ إِنَّا أَخْلَصْنَاهُمْ بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى

خاوندان دَ لاسونو | او سترګو | بیشکه مونږ | غوره کړی وو دوی | په خاص فضیلت سره | چه یاد دے

چه دَ (مضبوطو) لاسونو او دَ (سترګو) خاوندان وو مونږ هغوئی په یوه خاص خبره کښے مخصوص کړی وو چه هغه دَ آخرت

الدَّارِ ﴿٤٦﴾ وَإِنَّهُمْ عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ ﴿٤٧﴾ وَاذْكُرْ إِسْمَاعِيلَ

دَ آخرت | او بیشکه دوی | زمونږ په نزد | غوره شوی | بهترین خلق (وو) | او یاد کړه | اسماعیل

یادساتنه ده - دغه خلق مونږ سره چونړ شوی او ډیر نیکان خلق دی او اسماعیلؑ او الیسعؑ

وَالْيَسَعَ وَذَا الْكِفْلِ ۖ وَكُلٌّ مِنَ الْأَخْيَارِ ﴿٤٨﴾ هَٰذَا ذِكْرٌ ۚ وَإِنَّ

او الیسعؑ | او ذوالکفلؑ | او هریو | له نیکانو نه وو | دا | نصیحت دے | او بیشکه

او ذوالکفلؑ هم را یاد کړه او دوئ ټول په نیکانو خلقو کښے شامل وو دا دَ نصیحت یو بیان وُشو او پرهیزګارانو

لِلْمُتَّقِينَ لَحُسْنَ مَآبٍ ﴿٤٩﴾ جَنَّاتِ عَدْنٍ مُفَتَّحَةً لَهُمُ

پرهیزګارانو دَ پاره | ښه ځائے دَ ورتللو دے | باغونه دی | دَ همیشه وُسیدلو | پرانستلے شوی به وی | دوئ دَ پاره

له ډیر ښه ځائے دَ ورتلو دے. دَ همیشه اُوسیدو باغونه دی دَ کومو دروازے چه به دوی

الْأَبْوَابُ ﴿٥٠﴾ مُتَّكِئِينَ فِيهَا يَدْعُونَ فِيهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ وَشَرَابٍ ﴿٥١﴾

دروازے | تکیه به ئے لګولی وی | په هغے کښے | غواړی به | په هغے کښے | میوے | ډیرے | او شراب

دَ پاره پرانستے پرتے وی دوئ به په دغه باغونو کښے ډډے وهلے وی او ډیرے ډیرے میوے او شربتونه به راغواړی

وَعِنْدَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ أَتْرَابٌ ﴿٥٢﴾ هَٰذَا مَا تُوعَدُونَ

او دوی سره (به ښځے وی) | ښکته ساتونکے | دَ سترګو | دَ یو بل همزولے | هم دا ده | دَ څه چه | تاسو سره وعده کولے شوه

او ورسره به (دَ حیا نه) سترګے کوزے ساتونکے همزولے جینکئ ناستے وی، دا هغه نعمتونه دی چه تاسو سره دَ حساب دَ

لِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴿٥٣﴾ إِنَّ هَٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهُ مِنْ نَفَادٍ ﴿٥٤﴾ هَٰذَا ۚ

دَ پاره دَ ورځے | دَ حساب | بیشکه | دا | زمونږ روزی ده | نشته دَ دے | ختمیدل | دا ده

ورځے دَ پاره دَ هغے وعده کیږی، دا زمونږ هغه ورکړه ده چه دَ هغے هیڅکله خلاصے نشته، دا خبره خو وُشوه

وَإِنَّ لِلطَّاغِينَ لَشَرَّ مَآبٍ ﴿٥٥﴾ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿٥٦﴾

او بیشکه | سرکشانو دَ پاره | ډیر بد ځائے دَ ورتلو دے | دوزخ دے | دننه به ورځی دوئ هغے ته | پس هغه بد ځائے دے

او سرکشانو له ډیر خراب ځائے دَ ورتلو دے یعنی دوزخ چه دوئ به ورننه ورننوځی نو هغه ډیر زیات خراب ځائے دے

هَٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ ﴿٥٧﴾ وَآخَرُ مِنْ شَكْلِهِ أَزْوَاجٌ ﴿٥٨﴾

دا دے | پس وڅکئ | دا | یشیدلے اُوبه | او زوے | او دَ دے نه علاوه | دَ دے په شکل | ډیر قسمونه (به وی)

دا یشیدلے اُوبه او زوے دی نو دوئ دِ اوس دَ دے مزه وڅکی او دغه شان نور ډیر څیزونه دی -

هَٰذَا فَوْجٌ مُقْتَحِمٌ مَعَكُمْ ۖ لَا مَرْحَبًا بِهِمْ ۚ إِنَّهُمْ صَالُو النَّارِ ﴿٥٩﴾

دا دے | یو فوج | دننه راتلونکے | تاسو سره | دوی دِ چرے خوشحاله نه شی | بیشکه دوی | داخیدونکی دی | دوزخ کښے

دا یوه بله ډله تاسو سره ننوزی دوی دِ چرے هم خوشحاله نهٔ وی دوئ په دوزخ کښے پریوتونکی دی

قَالُوْا بَلْ اَنْتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ اَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوْهُ لَنَا فَبِئْسَ

دوی به وائی | (نه) بلکه | هم تاسو ته دِ | خوشحالی نصیب نهٔ شی | هم تاسو | را مخکښې کړے دے دا (عذاب) | مونږ دپاره | نو ډیره خرابه

هغوئ به ووائی چه نا بلکه هم ستا دِ چرے خوشحالی نصیب نهٔ شی، هم تاسو خو راته دا (دوزخ) را مخکښې کړے دے، نو دا ډیر خرابه

الْقَرَارُ ﴿۶۰﴾ قَالُوْا رَبَّنَا مَنْ قَدَّمَ لَنَا هٰذَا فَزِدْهُ عَذَابًا

هستوګنه ده | دوئ به وائی | اے زمونږ ربه! | چا چه را مخکښې کړے دے | مونږ دپاره | دا (عذاب) | نو زیات کړه هغهٔ دپاره | عذاب

هستوګنه ده هغوئ به ووائی چه اے زمونږ ربه! دا مصیبت چه مونږ ته چا را مخکښې کړے دے هغهٔ له په دوزخ کښې یو په

ضِعْفًا فِي النَّارِ ﴿۶۱﴾ وَقَالُوْا مَا لَنَا لَا نَرٰى رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمْ

دوچنده | په دوزخ کښې | او دوی به ووائی | په مونږ څهٔ وشو | چه مونږ نهٔ وینو | هغه سړی | چه شمیرل به مونږ هغوئ

دوه عذاب ورکړه. او وائی به چه څهٔ خبره ده چه مونږ هغه خلق (دلته) نهٔ وینو کوم چه به مونږ په

مِّنَ الْاَشْرَارِ ﴿۶۲﴾ اَتَّخَذْنٰهُمْ سِخْرِيًّا اَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْاَبْصَارُ ﴿۶۳﴾

په خرابو خلقو کښې | آیا مونږ کولے هغوئ سره | ټوقے | یا | آوړیدلی دی | له هغوئ نه | (زمونږ) سترګے.

شریرانو کښې شمیرل. دا مونږ ورپورے هسے ټوقے کولے که نه زمونږ نظر نه هغوئ نه اوړیدلی دا وړیدلی

اِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ اَهْلِ النَّارِ ﴿۶۴﴾ قُلْ اِنَّمَآ اَنَا مُنْذِرٌ

بیشکه | دا | برحق دی | جګړه کول | د دوزخیانو | ووایه | بیشکه | زهٔ | یو ویرونکے یم

دی. د دوزخیانو تر مینځه دا جنګ جګړه بالکل حقه خبره ده. ته اعلان وکړه چه زهٔ خو صرف یو ویرونکے یم.

وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّا اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿۶۵﴾ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

او نشته | بل څوک معبود | سیوا د الله نه | چه یو دے | ډیر غالب | رب دے | د آسمانونو | او د زمکے

او بغیر د یو غالب الله نه بل هیڅوک معبود نشته. هغه د آسمانونو او د زمکے او د دوئ تر مینځه

وَمَا بَيْنَهُمَا الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ ﴿۶۶﴾ قُلْ هُوَ نَبَؤٌا عَظِيْمٌ ﴿۶۷﴾ اَنْتُمْ

او د هغه څهٔ چه د دوی په مینځ کښې دی | ډیر غالب | ډیر بخښونکے دے | ووایه | هغه (قیامت) | خبر دے | ډیر لوئے | تاسو (خلق)

د ټولو څیزونو رب دے زبردست دے ډیر بخښونکے دے. ته ووایه چه هغه (قیامت) یو لوئے خبر دے د کوم نه چه

عَنْهُ مُعْرِضُوْنَ ﴿۶۸﴾ مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍ بِالْمَلَاِ الْاَعْلٰى اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿۶۹﴾

له هغه نه | مخ ګرځونکی یئ | نهٔ وو | ماته | هیڅ علم | د برنئ دنیا د فرښتو | هر کله چه هغوئ بحث کولو

تاسو بے پروا شوی یئ. ماته د برنئ دنیا د فرښتو هیڅ خبر نهٔ وو هر کله چه هغوئ په خپل مینځ کښې (په پیدا وښت د آدم) بحث کولو

اِنْ يُّوْحٰىٓ اِلَيَّ اِلَّآ اَنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۷۰﴾ اِذْ قَالَ رَبُّكَ

نهٔ شی کولے وحی | ماته | مګر دا چه | زهٔ خو صرف | ویرونکے یم | ښکاره | هر کله چه وفرمائیل | ستا رب

ماته خو د وحی په ذریعه صرف هم دا ښودلے شی چه زهٔ ښکاره ویرونکے یم. هر کله چه ستا رب فرښتو ته

لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ طِيْنٍ ﴿۷۱﴾ فَاِذَا سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ

فرښتو ته | چه بیشکه زهٔ | پیدا کوونکے یم | یو انسان | له خټے نه | بیا هر کله | چه زهٔ دے برابر کړم | او ویوکم

دا ووئیل چه زهٔ له خټے نه انسان جوړول غواړم. بیا هر کله چه زهٔ هغه پوره جوړ کړم او د خپل اخ

فِيهِ مِن رُّوحِي فَقَعُوا لَهُ سَٰجِدِينَ ﴿٧٢﴾ فَسَجَدَ الْمَلَٰٓئِكَةُ

په دهٔ کښې | دوح خپل | پس پرېوزئ | دهٔ ته | سجده کوونکی | پس سجده وکړه | فرښتو

نه روح پهٔ کښې وُپوکم ، نو تاسو ټول هغهٔ ته په سجده پرېوځئ ، نو ټولو فرښتو په جمع سجده

كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ﴿٧٣﴾ إِلَّآ إِبْلِيسَ اسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكَٰفِرِينَ ﴿٧٤﴾

ټولو | په جمع | سیوا | دَ ابلیس نه | هغهٔ تکبر وکړو | او هغه شو | له کافرانو نه

وُکړه ۔ خو یو ابلیس وُنهٔ کړه ځان ته غاوره شو او کافر شو ۔

قَالَ يَٰٓإِبْلِيسُ مَا مَنَعَكَ أَن تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ

وُئے فرمائیل | اے ابلیس ! | څهٔ څیز منع کړے تهٔ | له دې نه چه | تهٔ سجده وکړے | دهٔ تهٔ | کوم چه ما پیدا کړو | په خپل لاس

(الله) تپوس وکړه (چه) اے ابلیس! تهٔ څهٔ څیز هغهٔ ته دَ سجدے کولو نه منع کړے کوم چه ما په خپلو لاسونو جوړ کړے

أَسْتَكْبَرْتَ أَمْ كُنتَ مِنَ الْعَالِينَ ﴿٧٥﴾ قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِي

آیا تا تکبر وکړو | یا تهٔ ئے | دَ اُوچتے درجے ؟ | دهٔ ووئیل | زهٔ | غوره یم | له دهٔ نه | تا پیدا کړم زهٔ

دے؟ آیا تهٔ په غرور کښې راغلے یا تهٔ دَ لوئے مرتبے خاوند یئے؟ ابلیس ووئیل زهٔ له دهٔ نه غوره یم ، زهٔ تا دَ اور نه

مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِن طِينٍ ﴿٧٦﴾ قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ

له اور نه | او | تا پیدا کړو دے | له خټے نه | وُئے فرمائیل | پس اُوځه تهٔ | دِ دے ځائے نه | پس بیشکه تهٔ

پیدا کړے یم او دے دِ له خټو نه پیدا کړے دے ۔ حکم وُشو چه دَ دِے دلبار نه بهر وُځه تهٔ رټلے شوے

رَجِيمٌ ﴿٧٧﴾ وَإِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِيٓ إِلَىٰ يَوْمِ الدِّينِ ﴿٧٨﴾ قَالَ رَبِّ

رټلے شوے یئے | او بیشکه | په تا باندِ | زما لعنت دے | تر ورځے دَ قیامت | دهٔ ووئیل | اے زما ربه!

یئے ۔ او په تا به دَ قیامت تر ورځے پورے زما لعنت وریږی ۔ هغهٔ ووئیل چه اے زما ربه! ما ته

فَأَنظِرْنِيٓ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿٧٩﴾ قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ ﴿٨٠﴾ إِلَىٰ يَوْمِ

پس مهلت راکړه ماته | تر هغے ورځے پورے | چه خلق دوباره راپاخولے شی | وفرمائیل | بیشکه تا ته | مهلت درکړے شو | تر هغے ورځے پورے

تر هغے ورځے مهلت راکړه هر کله چه به مړی دوباره راپاخولے شی ۔ الله وفرمائیل چه ځه! تا ته مهلت دے ۔ دَ یوے ټاکلے

الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ ﴿٨١﴾ قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٨٢﴾ إِلَّا عِبَادَكَ

چه دَ هغے وخت | معلوم دے | دهٔ ووئیل | قسم دے ستا په عزت | خامخا به گمراه کړم دوی | ټول | سیوا ستا دَ هغه بندګانو

ورځے پورے ۔ (ابلیس) ووئیل، چه ستا په عزت مِ دِ قسم وی چه زهٔ به دوی ټول گمراه کوم، سیوا ستا دَ هغه

مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ ﴿٨٣﴾ قَالَ فَالْحَقُّ وَالْحَقَّ أَقُولُ ﴿٨٤﴾ لَأَمْلَأَنَّ

له دوی نه | چه خالص کړے شوی دی | وئے فرمائیل | پس هم دا حق دے | او هم حق | زهٔ وایم | چه زهٔ به ضرور ډک کړم

بندګانو نه چه مخلص دی ۔ الله وفرمائیل چه زهٔ درته رښتیا وایم او زهٔ خو تل رښتیا وایم چه زهٔ به له تا نه

جَهَنَّمَ مِنكَ وَمِمَّن تَبِعَكَ مِنْهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٨٥﴾ قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ

دوزخ | له تا نه | او له هغه چا نه چه پیروی کوی ستا | له دوی | ټولو نه | ووایه | نهٔ غواړم له تاسو نه

او ستا دَ ټولو منونکو نه دوزخ ډک کړم ، (اے پیغمبره!) تهٔ ووایه چه زهٔ تاسو نه په

عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ ۝۸۶ اِنْ هُوَ

په دے | څۀ مزدوری | او نۀ یم زۀ | له تکلف کوونکو نه | نۀ دے دا (قرآن)

دے قرآن باندې هیڅ اجر نۀ غواړم ، او نۀ زۀ تکلف کوونکے یم ، دا خو دَ دنیا

اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝۸۷ وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَاَهٗ بَعْدَ حِيْنٍ ۝۸۸

مګر | نصیحت | دَ ټولو جهانونو دَ پاره | او تاسو به ضرور وُپیژنئ | دَ دِے حال | څۀ موده پس

خلقو له .بو نصیحت دے ، او یقیناً ډیر زر به دِے خلقو ته دَ دِے حقیقت معلوم شی۔

سُوْرَةُ الزُّمَرِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ خَمْسٌ وَّ سَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّثَمَانُ رُكُوْعَاتٍ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة زمر په مکه کښے نازل شو په دے کښے ۷۵ آیتونه او اتۀ رکوع ګانړدی | شروع کوم په نوم دَ الله چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے۔

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ۝۱ اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ

نازل کړے شوے دے | دا کتاب | دَ الله دَ طرف نه | چه ډیر غالب | حکمت والا دے | بیشکه | مونږ نازل کړو | ستا طرف ته

دا کتاب دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نازل شوے دے چه غالب دے دَ حکمتونو خاوند دے۔ مونږه دا کتاب په حقه سره

الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ فَاعْبُدِ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ۝۲ اَلَا لِلّٰهِ

دا کتاب | برحق | پس عبادت کوه دَ الله | خالص کوونکے | دۀ دَ پاره | عبادت | داوړه! | الله دَ پاره

ستا طرف ته راکوز کړے دے . نو ته په اخلاص سره دَ الله تعالیٰ عبادت کوه ، یاد ساته! خالصه بندګی

الدِّيْنُ الْخَالِصُ ۭ وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۘ مَا نَعْبُدُهُمْ

عبادت دے | خالص | او کومو چه | نیولی دی | سیوا دَ الله نه | دوستان | چه نۀ | کوو مونږ عبادت دَ دوی

هم دَ الله تعالیٰ دَ پاره ده۔ او چا چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا نور شریکان جوړ کړی دی (او وائی) چه مونږ خو بس ځکه

اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِيْ مَا

مګر دَ پاره دَ دے چه نزدے کړی دوی مونږ | الله ته | ډیر نزدے | بیشکه الله به | فیصله وکړی | دَ دوی په مینځ کښے | په هغه خبرو کښے

دَ دوی عبادت کوو چه الله تعالیٰ ته مونږ نزدے کړی. بیشکه (یوه ورځ به راشی) هرکله چه الله تعالیٰ دَ دوی په مینځ کښے دَ هغے خبرے

هُمْ فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ كٰذِبٌ كَفَّارٌ ۝۳

په کوم کښے چه دوی | اختلاف کولو | بیشکه الله | لاره نۀ ښائی | هغه چاته چه | دروغژن | ناشکره دے

فیصله وکړی په کومه کښے چه دوی جګړه کوله۔ الله تعالیٰ داسے سړی په سمه لار نۀ راولی چه دروغژن او انکار کوونکے وی۔

لَوْ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصْطَفٰى مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۙ

کۀ چرے غوښتلے | الله چه | وُنیسی | څوک ځوئے | نو غوره کړے به ئے وو | له خپل مخلوقات نه | څوک ئے چه غوښتلے

کۀ الله تعالیٰ ځان له اولاد نیول غوښتلے نو په خپل مخلوق کښے څوک چه ئے خوښ وو هغه به ئے چوټه کړے وو۔

سُبْحٰنَهٗ ۭ هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۝۴ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

دَ خو پاک دے | هم دے الله دے | یو ازے | ډیر غالب | دۀ پیدا کړل | آسمانونه | او زمکه

دے پاک دے هغه داسے الله دے چه یو دے زبردست دے ، دۀ آسمانونه او زمکه په حکمت پیدا

بِالْحَقِّ ۚ يُكَوِّرُ الَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى الَّيْلِ وَسَخَّرَ

برحق | دے رانغاړی شپه | په ورځ | او رانغاړی | ورځ | په شپه | او دۀ تابع کړل

کړی دی . هغه شپه په ورځ باندِ رانغاړی او ورځ په شپه باندِ رانغاړی ، او نور او

الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ يَّجْرِي لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ اَلَا هُوَ الْعَزِيْزُ

نُور | او سپوږمئ | هر یو روان دے | یو وخت | مقرر پورے | واوره | هم دے | غالب

سپوږمئ ئے په کار لګوی دی چه هر یو په تر ټاکلے نیټے پورے روان دی . یاد ساته چه هغه غالب دے

الْغَفَّارُ ۝٥ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا

بخښونکے | دۀ پیدا کړئ تاسو | له یو کس (آدم) نه | بیا | دۀ پیدا کړه | له دۀ نه | بی بی دَ دۀ

ډیر بخښونکے دے . هغه تاسو دَ یو تن نه راپیدا کړئ ، بیائے دَ هغهٔ دَ ځان نه ورله جوړئ پیدا کړه او

وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۗ يَخْلُقُكُمْ فِيْ بُطُوْنِ

او ښکته ئے راولیږلے | تاسو دَ پاره | له څاروو نه | اتهٔ | جوړے | پیدا کوی | په خیټو کښے

تاسو له ئے په څاروو کښے اتهٔ جوړے پیدا کړے ، هغهٔ تاسو ستاسو دَ میندو په خیټو

اُمَّهٰتِكُمْ خَلْقًا مِّنْ بَعْدِ خَلْقٍ فِيْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ ۗ

ستاسو دَ میندو | (یو قسم) پیدا کول | پس له | (بل قسم) پیدا کولو نه | په تیارو | دریو کښے

کښے په مختلفو مرحلو کښے په دریو تیارو کښے دننه پیدا کوی

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ ۗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَاَنّٰى تُصْرَفُوْنَ ۝٦

هم دے دے الله | رب ستاسو | هم دَ دۀ دہ | بادشاهی | بل څوک معبود نشته | سیوا دَ دۀ نه | پس کوم خوا | کرځولے شئ تاسو

هم دا الله ستاسو رب دے بادشاهی یوازے دَ هغهٔ ده ، دَ هغهٔ نه سیوا بل معبود نشته نو بیا تاسو کوم خوا روان یئ

اِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ ۟ وَلَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ ۚ

کهٔ چرے تاسو انکار کوئ | نو بیشکه | الله | بے نیازه دے | له تاسو نه | او دے نهٔ خوښوی | خپلو بندګانو دَ پاره | کفر

کهٔ چرے تاسو ناشکری کوئ نو (یاد ساتئ چه) الله تاسو نه بے پروا دے او هغه خپلو بندیانو له کفر نهٔ خوښوی

وَاِنْ تَشْكُرُوْا يَرْضَهُ لَكُمْ ۗ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ۗ

او کهٔ چرے تاسو شکر کوئ | نو دے خوښوی هغه | تاسو دَ پاره | او نهٔ به اوچتوی | هیڅ اُوچتونکے | بار | دَ بل چا

او کهٔ تاسو شکر اُوباسئ نو هغه ئے درله خوښوی ، او (واوره !) هیڅوک بوج اُوچتونکے به دَ بل بوج نهٔ اُوچتوی

ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۗ

بیا به | طرف دَ ربّ ستاسو نه | ستاسو واپس تلل وی | بیا به ئے وُښائی تاسو نه | هغه څهٔ | چه تاسو به کول

بیا به تاسو خپل رب ته پسته ورځئ ، نو هغه به درته ستاسو ټول کارونه (یو په یو) ښائی

اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝٧ وَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَا

بیشکه دے | پوهه دے | په رازونو دَ سینو | او هر کله چه وُرسیږی | انسان ته | څهٔ تکلیف | نو بلی

هغهٔ ته دَ زړونو پټ رازونه په ښهٔ شان معلوم دی ، او کله چه انسان ته څهٔ تکلیف وُرسیږی نو خپل رب ته

رَبَّهٗ مُنِيْبًا اِلَيْهِ ثُمَّ اِذَا خَوَّلَهٗ نِعْمَةً مِّنْهُ نَسِيَ

خپل رب | په رجوع کوېو | دَده طرف ته | بیا | هرکله چه | ورکړی ده ته | څهٔ نعمت | له خپل طرف نه | نو دے هېر کړی

رجوع شی او دَ هغهٔ بلنه کوی ، بیا چه هغه ورله دَ خپل طرف نه نعمت ورکړی ، نو هغه خبره هېره

مَا كَانَ يَدْعُوْٓا اِلَيْهِ مِنْ قَبْلُ وَجَعَلَ لِلّٰهِ اَنْدَادًا لِّيُضِلَّ

هغه څهٔ چه دُعائے کوله | دَ هغے | له دے نه وړاندِ | او دے مقرر کړی | الله دَ پاره | شریکان | دَ پاره دَ چه گمراه کړی

کړی دَ کومے دَ پاره چه ئے وړاندِ بلنه کوله او خدائے له شریکان جوړول شروع کړی ، نتیجه ئے دا شی چه نو

عَنْ سَبِيْلِهٖ ۭ قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ قَلِيْلًا ڰ اِنَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ النَّارِ ⑧

دَ الله دَ لارے نه | وُوایه | فائده واخله | په خپل کفر سره | لږه | بیشکه ته | له دوزخیانو نه یئے .

خلق دَ هغهٔ دَ لارے نه گمراه کړی ، ته وُوایه چه دَ خپل کفر نه یو څو ورځے فائده اُوچته کړه ، بیشکه ته دوزخی یئے .

اَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ اٰنَآءَ الَّيْلِ سَاجِدًا وَّقَآئِمًا يَّحْذَرُ الْاٰخِرَةَ

آیا هغه څوک چه | عبادت کوونکے وی | دَ شپے په وختونو کښے | په سجده | او په ولاړه | ویریږی | له آخرت نه

(آیا داسے سړے غوره دے) یا هغه چه دَ شپے په وختونو کښے په سجده پروت او په قیام ولاړ وی دَ آخرت نه ویریږی

وَيَرْجُوْا رَحْمَةَ رَبِّهٖ ۭ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ

او اُمید لری | دَ رحمت | دَ رب خپل | وُوایه | آیا | برابر دی | هغه خلق چه | پوهیږی

او دَ خپل رب دَ رحمت اُمید واروی ، نو ته وُوایه چه آیا پوهه خلق او ناپوهه

وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ۭ اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ ⑨ قُلْ يٰعِبَادِ

او هغه خلق چه | نهٔ پوهیږی | بیشکه | نصیحت قبلوی | خاوندان دَ عقل | وُوایه | اے زما بندګانو

کسان یو برابر دی ؟ نصیحت خو بس هغه څوک قبلوی چه عقلمند وی - وُوایه اے زما مؤمنانو

الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوْا رَبَّكُمْ ۭ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِيْ هٰذِهِ

چه | ایمان راوړے دے تاسو | ویریږئ | دَ خپل رب نه | دَ پاره دَ هغه خلقو | کومو چه نیکی وکړه | په دے

بندګانو ! دَ خپل رب نه ویره کوئ - څوک چه په دے دُنیا کښے نیکی وکړی هغهٔ له نیکه

الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۭ وَاَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةٌ ۭ اِنَّمَا يُوَفَّى

دُنیا کښے | نیکه بدله ده | او زمکه | دَ الله | فراخه ده | بیشکه | پوره به ورکړے شی

بدله مقرر ده او دَ الله تعالیٰ زمکه اُرته پیرته پرته ده (یاد ساته چه) کوم خلق دَ صبر

الصّٰبِرُوْنَ اَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ⑩ قُلْ اِنِّيْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ

صبر کوونکو ته | دَ دوی اجر | بے حسابه | وُوایه | بیشکه ما ته حکم شوے دے | چه زهٔ عبادت وکړم | دَ الله

نه کار اخلی هغوئ له بے حسابه اجر او ثواب مقرر دے . ته وُوایه چه ما ته دا حکم شوے دے چه دَ الله تعالیٰ عبادت دِ

مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ⑪ وَاُمِرْتُ لِاَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ ⑫

خالص کړے | هغه دَ پاره | دین | او ما ته حکم شوے دے | چه یم دِ زهٔ | اول | دَ مسلمانانو

په دے شان کوم چه عبادت خالص هغهٔ له ساتم او دا حکم راته شوے دے چه په مسلمانانو کښے دِ اول (نمبر) مسلمان یم

قُلْ اِنِّیْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَیْتُ رَبِّیْ عَذَابَ یَوْمٍ عَظِیْمٍ ﴿۱۳﴾ قُلِ اللّٰهَ

ووایه | چه بیشکه زهٔ ویریږم | که چیرې زهٔ نافرمانی وکړم | دَ خپل رب | له عذاب نه | دَ یوې ورځې لوئې | ووایه | خاص دَ الله

ووایه چه که زهٔ دَ خپل رب خبره ونهٔ منم نو دَ (قیامت) دَ لوئې ورځې دَ عذاب نه ویریږم ـ ووایه چه زهٔ خو دَ الله

اَعْبُدُ مُخْلِصًا لَّهٗ دِیْنِیْ ﴿۱۴﴾ فَاعْبُدُوْا مَا شِئْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ ؕ قُلْ

زهٔ عبادت کوم | خالص کړې دَ دهٔ دَ پاره | خپل دین | پس تاسو عبادت کوئ | دَ چا چه تاسو غواړئ | له دهٔ نه سیوا | ووایه

عبادت په دې شان کوم چه خپل عبادت خالص دَ هغهٔ په نوم ساتم نو تاسو دَ هغهٔ نه سیوا هر چا له چه غواړئ دَ هغه عبادت کوئ. ووایه

اِنَّ الْخٰسِرِیْنَ الَّذِیْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَاَهْلِیْهِمْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ ؕ

بیشکه | زیان کارات | هغه خلق دی | چه زیان کښې ئې واچول | خپل ځانونه | او خپل کور والا | په ورځ | دَ قیامت

چه تاوانیان هغه کسان دی ، چه خپل ځانونه او خپله خپلخانه ئې دَ قیامت په ورځ تاوانی کړه

اَلَا ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِیْنُ ﴿۱۵﴾ لَهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ

واوره ! | هم دا دې | هغه نقصان | ښکاره | دوئ دَ پاره | دَ دوئ دَ پاسه نه (هم) | سائیانونه وی

یاد ساته ! چه هم دغه ښکاره تاوان دې ـ هغوئ له به دَ پورته نه هم دَ اور شعلې وی

مِّنَ النَّارِ وَمِنْ تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ؕ ذٰلِكَ یُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهٖ عِبَادَهٗ ؕ یٰعِبَادِ

دَ اور | او دَ دوئ دَ لاندې (هم) | سائبانونه | هم دا (خبره) دَه | ویروی الله له دې نه | خپل بندګان | اے زما بندګانو!

او دَ لاندې نه به هم دَ اور لمبې وی ـ دا هغه څیز دې چه الله تعالیٰ پرې خپل بندګان ویروی (نو) اے زما بندګانو!

فَاتَّقُوْنِ ﴿۱۶﴾ وَالَّذِیْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ اَنْ یَّعْبُدُوْهَا وَاَنَابُوْٓا

وویریږئ له مانه | او کوم خلق چه | ځان وساتی | له شیطانانو نه | چه دوی دِ عبادت وکړی دَ دهٔ | او رجوع ئې وکړه

زمانه ویره وکړئ ـ او څوک چه دَ شیطان دَ عبادت نه ځان په ډډه ساتی ، او الله تعالیٰ ته رجوع

اِلَی اللّٰهِ لَهُمُ الْبُشْرٰی ۚ فَبَشِّرْ عِبَادِ ﴿۱۷﴾ الَّذِیْنَ یَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ

الله طرف ته | دوئ دَ پاره | زیرې دې | پس زیرې ورکړه | زما بندګانو ته | هغه چه | آوری | خبره

کوی ، هغوئ دَ زیری لائق دی نو زما بندیانو ته زیرې ورکړه ، څوک چه خبرې ته غوږ بدی او په ښو ښو

فَیَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ هَدٰىهُمُ اللّٰهُ وَاُولٰٓئِكَ هُمْ

بیا پیروی کوی | دَ دهٔ دَ ډیرو ښو خبرو | هم دا دی | هغه خلق چه | هدایت کړې دې دوئ ته | الله | او هم دا خلق دی

خبرو باندې عمل کوی ـ هم دغه کسان دی چه الله ورته هدایت کړې دې او هم دغه کسان دَ عقل

اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۱۸﴾ اَفَمَنْ حَقَّ عَلَیْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ ؕ اَفَاَنْتَ تُنْقِذُ

عقل والا | پس آیا هغه کس | چه ثابته شوه | په هغهٔ باندې | کلمه دَ عذاب | پس آیا ته | خلاصولې شې

خاوندان دی ، آیا په چا چه دَ عذاب خبره ثابته شوې ده ـ نو آیا ته دوزخیان دَ عذاب

مَنْ فِی النَّارِ ﴿۱۹﴾ لٰكِنِ الَّذِیْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ غُرَفٌ

هغه څوک چه | په اور کښې دې | لیکن | کوم خلق چه | ویریږی | دَ خپل رب نه | هغوئ دَ پاره | بالاخانې دی

نه خلاصولې شې ؟ البته څوک چه دَ خپل رب نه ویریږی ، هغوئ له بالاخانې مقررې دی

مِنْ فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِيَّةٌ ۙ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ وَعْدَ اللّٰهِ

دَ پاسه دَ هغې | نورې بالاخانې دي | جوړې شوې | بهيږي به | لاندې دَ هغې نه | نهرونه | داوعده ده | دَ الله

چه دَ هغې نه پورته نورې بالاخانې جوړې پرتې دي چه لاندې ترې نه ويالې بهيږي ، دا دَ الله وعده ده

لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ الْمِيْعَادَ ﴿۲۰﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً

خلاف نهٔ کوی | الله | له وعدې نه | آيا نهٔ دی کتلی تا | چه هم الله | ښکته راوليږلې | له آسمان نه | اوبهٔ

الله هيڅکله دَ وعدې خلاف نهٔ کوی. آيا تا ته خبره نهٔ دی کتلی چه الله دَ بره نه اوبهٔ را توئې کړې بيائې دَ

فَسَلَكَهٗ يَنَابِيْعَ فِي الْاَرْضِ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا مُّخْتَلِفًا اَلْوَانُهٗ

بيائې دننه ورننويستلې دا | روانې چينې | په زمکه کښې | بيا دې راوباسی له دې نه | فصل | چه مختلف دی | رنګونه دَدې

زمکې دَ پاسه په لارو کښې وُبهيولې ، بيا ترې نه فصلونه پيدا کوی چه دَ هغې قسمونه مختلف وی

ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَجْعَلُهٗ حُطَامًا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

بيا هغه وُچيږی | بيا ته وينې هغه | زيړ شوی | بيا | کړی هغه | ريزه ريزه | بيشکه | په دې کښې

بيا هغه اُوچ شی نو ته ئې تک زيړ وينې ، بيا دې هغه چوره چوره کړی - په دې کښې يقيناً عقلمندو

لَذِكْرٰى لِاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿۲۱﴾ اَفَمَنْ شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ

نصيحت دې | عقل والو دَ پاره | آيا هغه کس | چه پرانستلو | الله | سينه دَ دهٔ | دَ پاره دَ اسلام

دَ پاره نصيحت پروت دې - آيا الله چه دَ چا سينه اسلام ته پرانستې ده -

فَهُوَ عَلٰى نُوْرٍ مِّنْ رَّبِّهٖ ۭ فَوَيْلٌ لِّلْقٰسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ۭ

پس هغه | په رڼا کښې وی | له طرفه دَ رب خپل نه | پس افسوس دې | چه سخت دی | زړونه دَدوی | دَ الله دَ ياد نه

نو دَ خپل رب په رڼا کښې روان دی (هغه او ګمراهان برابر کيدې شی؟) نو دَ چا زړونه چه دَ الله دَ ياد نه اثر نهٔ اخلی هغوئی تباه دی

اُولٰۗىِٕكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۲﴾ اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحْسَنَ الْحَدِيْثِ كِتٰبًا

هم داخلق دی | په ښکاره ګمراهئ کښې | الله | نازل کړو | بهترين | کلام | يعنی کتاب

دغه خلق په ښکاره ګمراهئ کښې پراتهٔ دی - الله تعالیٰ ډير ښکلې (غوره) کتاب را نازل کړې دې دا سې کتاب دې چه

مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ ڰ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُوْدُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ۚ

چه يو بل ته ښا دی | بيا بيا ويلې شی آيتونه دې | چه زيګ زيګ کيږی له دې نه | څرمنې | دَ هغو خلقو | چه ويريږی | دَ خپل رب نه

مضمون ئې يو بل سره سم برابر ، بيا بيا ويلې شوې دې څوک چه دَ خپل رب و يريږی دَ هغوئی زړونه پرې وُرپيږی

ثُمَّ تَلِيْنُ جُلُوْدُهُمْ وَقُلُوْبُهُمْ اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ ۭ ذٰلِكَ هُدَى

بيا نرمې شی | دَدوی څرمنې | او دَدوی زړونه | ذکر دَ الله ته | هم دا دې | هدايت

نو بيا دَ هغوئی وجودونه او زړونه دَ الله تعالیٰ ياد ته متوجه شی - دا دَ الله تعالیٰ هدايت دے

اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ

دَ الله | هدايت ورکوی | په دې سره | چا ته چه | دې وغواړی | او څوک چه ګمراه کړی | الله | پس نشته | دهٔ ته

وَ چا ته په حقله چه غواړی نو دَدې په ذريعه ورته هدايت کوی - او څوک چه الله تعالیٰ بے لارې کړی نو هغهٔ ته هيڅوک

مِنْ هَادٍ ﴿۲۳﴾ اَفَمَنْ يَّتَّقِىْ بِوَجْهِهٖ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

څوک هدایت ورکوونکے | پس آیا هغه کس | چه ځان بچ کوی | په مخ خپل سره | دَ خراب | عذاب نه | په ورځ | دَ قیامت

لاره ښوونکے نهٔ شی. آیا څوک چه دَ قیامت په ورځ دَ خپل مخ په ذریعه ځان دَ سخت عذاب نه بچ کول غواړی

وَقِيْلَ لِلظّٰلِمِيْنَ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ﴿۲۴﴾ كَذَّبَ الَّذِيْنَ

او وُبه ویلے شی | ظالمانو ته | وڅکئ تاسو | هغه څهٔ | چه تاسو به کول. | دروغ گنړلی وو | هغه خلقو چه

او داسے ظالمانو ته به حکم وُشی چه اوس تاسو دَ خپل عمل خوند وڅکئ (نو آیا دوی دَ هغه چا سره برابر کیدے شی چه دَ آتش نه وی؟) دَ دوی نه وړاندِ هم

مِنْ قَبْلِهِمْ فَاَتٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۲۵﴾ فَاَذَاقَهُمُ

له دوی نه وړاندِ وُو | نو راغے په دوی باندِ | عذاب | له هغه ځائے نه | چه دَ دوی گمان هم نه وو | پس وڅکوله دوی ته

خلقو (پیغبران) دروغژن گنړلی وو نو داسے ناکهانی عذاب پرے راغے چه دَ هغوی په خوا خاطر کښے هم نهٔ وو نو الله تعالیٰ هغوی

اللّٰهُ الْخِزْيَ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا

الله | رُسوائی | په ژوند دَ دنیا کښے | او عذاب | دَ آخرت | ډیر لوئے دے | کاش! دوی

ته دَ دے دُنیا په ژوند کښے دَ ذلت مزه وڅکوله ، او دَ آخرت عذاب خو ډیر لوئے دے کاش! که دوی

يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۶﴾ وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِىْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ

پوهیدلے | او بیشکه مونږ بیان کړل | خلقو دَ پاره | په دے قرآن کښے | د هر قسم

پوهیدلے. او مونږ په دے قرآن کښے خلقو ته هر قسم ښهٔ ښهٔ مضمونونه بیان کړی

مَثَلٍ لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۷﴾ ۚ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِىْ عِوَجٍ

مثالونه | دَ پاره دَ دے چه دوی | نصیحت حاصل کړی | قرآن | عربی | بے عیبه

دی چه نصیحت ترے نه واخلی - داعربی قرآن دے چه دَ ذرے هومره کږلیچ په کښے نشته

لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۲۸﴾ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيْهِ شُرَكَآءُ

ښائیږی چه دوی | پرهیزگاران شی | بیان کړو | الله | یو مثال | دَ یو داسے سړی (غلام) دے | چه په کښے | ډیر شریکان دی

چه دوئی (پرے) ځانونه بچ کړی - الله تعالیٰ یو مثال بیانوی چه یو سړے دے چه څو تنه پکښے شریک دی

مُتَشٰكِسُوْنَ وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ ۭ هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا ۭ

په خپل مینځ کښے مخالف | او یو غلام دے | سالم | دَ یو سړی | آیا | دا دواړه برابر دی | په مثال کښے

او دَ یو بل سره ضد ساتی . او یو بل سړے دے چه سالم دَ یو مالک مال دے آیا دَ دے دواړو حال یو برابر کیدے شی؟

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ۚ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۹﴾ اِنَّكَ مَيِّتٌ وَّاِنَّهُمْ

ټول تعریف | الله دَ پاره دے | بلکه | اکثر له دوی نه | نهٔ پوهیږی | بیشکه تهٔ (هم) | مړکیدونکے یې | او بیشکه دوی (هم)

ټول تعریفونه الله لره دی ، بلکه په دوئی کښے اکثر خلق نهٔ پوهیږی - بیشکه تهٔ به هم مړے او دوئی به هم

مَّيِّتُوْنَ ﴿۳۰﴾ ثُمَّ اِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عِنْدَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُوْنَ ﴿۳۱﴾

مړه کیدونکی دی | بیا بیشکه تاسو به | په ورځ دَ قیامت | په نزد دَ رب خپل | دَ یو بل سره جګړه کوئ.

مړی - بیا به یقیناً تاسو ټول دَ قیامت په ورځ خپلے جګړے دَ الله تعالیٰ په وړاندِ یږدئ.

وقف لازم

ع ۳ / ۱۰ / ۱۷

فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللّٰهِ وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ

پس څوک | زيات ظالم دے | له هغه چانه | چه دروغ ئے وتړل | په الله | او دروغ ئے وګڼړله | رښتيني خبره

بيا له هغه چا نه زيات ظالم څوک دے چه په الله تعالیٰ باندې دروغ وتړي ، او هر کله چه رښتيني خبره ورته

إِذْ جَآءَهٗ ۭ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿٣٢﴾ وَالَّذِيْ جَآءَ

هر کله چه راغله ده ته | آيا نه دے | په دوزخ کښے | ځائے | د کافرانو | او چاچه | راوړه

راشي نو هغه دروغ وګڼړي ؟ آيا د (داسے) کافرانو هستوګنه په دوزخ کښے نه ده ؟ او څوک چه رښتيني خبره

بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖٓ أُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿٣٣﴾ لَهُمْ مَّا

رښتيني خبره | او چاچه تصديق وکړو د دے | هم دا دی | پرهيزګاران | دوی د پاره دی | هغه څه

راوړي او هغه رښتيا ومني نو بس دغه خلق پرهيزګاران دی، د هغوی زړه چه هر څه

يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۭ ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٣٤﴾ لِيُكَفِّرَ

چه دوی ئے غواړی | د دوی د رب سره | هم دا ده | جزا | د نيکانو | د پاره د دے چه لرے کړی

وغواړی نو خپل رب سره به ئے تيار بيا مومي ، د نيکانو خلقو هم دغه بدله ده ، د پاره د دے چه الله تعالیٰ

اللّٰهُ عَنْهُمْ أَسْوَأَ الَّذِيْ عَمِلُوْا وَيَجْزِيَهُمْ أَجْرَهُمْ

الله | له دوی نه | بد يانے | کومے چه | دوی کړے وے | او ورکړی الله دوی ته | اجر د دوی

د هغوی خراب کارونه چه هغوی وکړل د هغوی نه لرے کړی او د نيکو کارونو

بِأَحْسَنِ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٣٥﴾ أَلَيْسَ اللّٰهُ بِكَافٍ

په بدله کښے د نيکو کارونو | کوم چه به | دوی کول | آيا نه دے | الله | کافي

په بدله کښے ورته پوره پوره ثواب ورکړی - آيا الله تعالیٰ خپل (نيک) بنده له يوازے

عَبْدَهٗ ۭ وَيُخَوِّفُوْنَكَ بِالَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ ۭ وَمَنْ يُّضْلِلِ

د خپل بنده د پاره | او دوی ويروی تا | له هغه خلقونه | چه د ده نه سيوا دی | او څوک چه | چه ګمراه کړی

کافي نه دے ؟ او (اے نبی!) دوی تا د الله تعالیٰ نه سيوا د نورو څيزونو نه يروی او څوک چه الله بے لارے کړی

اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ﴿٣٦﴾ وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّضِلٍّ ۭ

الله | پس نشته ده د پاره | څوک لاره ښودونکے | او چا ته چه لاره وښائی | الله | پس نشته | ده د پاره | څوک ګمراه کوونکے

نو هيڅوک ئے په لاره کولے نه شي او چا ته چه الله تعالیٰ هدايت وکړی نو هغه هيڅوک ګمراه کولے نه

أَلَيْسَ اللّٰهُ بِعَزِيْزٍ ذِي انْتِقَامٍ ﴿٣٧﴾ وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَّنْ

آيا نه دے | الله | غالب | انتقام اخستونکے | او که چرے | ته تپوس وکړے له دوی نه | چا

شي ، آيا الله تعالیٰ زبردست (او) انتقام اخستونکے نه دے ؟ او که ته د دوی نه تپوس وکړے چه آسمانونه

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ۭ قُلْ

پيدا کړل | آسمانونه | او زمکه | نو دوی به ضرور ووائی | الله | ووايه

او زمکه چا پيدا کړی دی ؟ نو دوی به ووائی چه الله (پيدا کړی دی) ته ورته ووايه

أَفَرَءَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ إِنْ أَرَادَنِىَ ٱللَّهُ

پس آیا تاسو کتلی دی | هغه چا ته | چه تاسو ئې عبادت کوئ | دَ الله نه سیوا | که چرے | اراده وکړی ما دَپاره | الله

چه بنه! نو دا رانه وښایئ چه تاسو دَ خدائے نه بغیر دَ چا عبادت کوئ که چرے الله تعالیٰ ما ته څه تکلیف

بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كَـٰشِفَـٰتُ ضُرِّهِۦٓ أَوْ أَرَادَنِى بِرَحْمَةٍ

دَ تکلیف راکولو | (نو) آیا دوئ | لرے کوونکی دی | دا تکلیف؟ | یا دے وُغواړی ما دَپاره | څه مهربانی

را رسول وُغواړی نو آیا هغوئ دَ ده (راکړے شوے) تکلیف لرے کولے شی؟ یا که خدائے ما سره (څه) مهربانی کول غواړی

هَلْ هُنَّ مُمْسِكَـٰتُ رَحْمَتِهِۦ ۚ قُلْ حَسْبِىَ ٱللَّهُ ۖ

(نو) آیا | دوئ | منع کوونکی دی | دَ ده مهربانی؟ | وُوایه | کافی دے ما دَپاره | الله

نو هغوئ دَ ده مهربانی منع کولے شی؟ ته ووایه چه ماله یوازے الله تعالیٰ کافی دے

عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ ٱلْمُتَوَكِّلُونَ ۞ ٣٨ قُلْ يَـٰقَوْمِ ٱعْمَلُوا۟

په ده باندِ | توکل کوی | توکل کوونکی | ووایه | اے زما قومه! | عمل کوئ تاسو

توکل کوونکی همیشه هم په ده توکل کوی. ته ورته ووایه چه اے زما قومه! تاسو په خپل حال

عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّى عَـٰمِلٌ ۖ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ۞ ٣٩ مَن يَأْتِيهِ

په خپل ځائے | بیشکه زهٔ (هم) عمل کوونکے یم | پس ژر ده به تاسو پوهه شئ | (چه) په چا باندِ | راځی

باندِ لګیا اوسئ عمل کوئ زهٔ هم (په خپل ځائے باندِ) عمل کوم پس ژر ده به تاسو ته معلومه شی چه په چا باندِ شرموونکے

عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ۞ ٤٠ إِنَّآ

عذاب | چه رُسوا کړی دے | او راکوزیږی | په ده باندِ | عذاب | دَ همیشه | بیشکه مونږ

عذاب راتلونکے دے او څوک په تل عمری عذاب اخته کیږی؟ مونږ په تا باندِ

أَنزَلْنَا عَلَيْكَ ٱلْكِتَـٰبَ لِلنَّاسِ بِٱلْحَقِّ ۖ فَمَنِ ٱهْتَدَىٰ

نازل کړو | په تا باندِ | دا کتاب | دَ پاره دَ خلقو | برحق | پس چا چه | لاره بیا موندله

دا کتاب دَ خلقو دَ هدایت دَ پاره په حقه نازل کړے دے، نو څوک چه په سمه لاره روان شی

فَلِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۖ وَمَآ أَنتَ

نو خپل ځان دَپاره | او څوک چه | بے لارے شو | نو بیشکه | هغه ګمراه شو | خپل ځان دَپاره | او نه | یئے ته

نو ځان له ګټه کوی او څوک چه بے لارے شی نو ځان ته نقصان رسوی. او ته دَ دوئ څهٔ ذمه وار

عَلَيْهِم بِوَكِيلٍ ۞ ٤١ ٱللَّهُ يَتَوَفَّى ٱلْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا

په دوی باندِ | نګهبان | الله | قبض کوی | روحونه | په وخت دَ مرګ دَ هغے

خو نه یئے. هم الله تعالیٰ روحونه دَ مرګ په وخت کښے قبض کوی

وَٱلَّتِى لَمْ تَمُتْ فِى مَنَامِهَا ۖ فَيُمْسِكُ ٱلَّتِى قَضَىٰ عَلَيْهَا

او هغه (روح) | چه نه مری | په خوب دَ هغے کښے | نو منع کوی | هغه چه | فیصله ئے وکړه | په هغے باندِ

او چه دَ چا مرګ نه وی راغلے نو دَ خوب په وخت کښے ئے قبض کړی، بیا هغه (روحونه) ایسار کړی چه دَ مرګ حکم ئے پرے

الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الْأُخْرٰى اِلٰى اَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

مرگ | او لیږی | هغه بل | تر وخت مقرر پورے | بیشکه | په دے کښے

ـلے دی۔ او باقی روحونه تر یوے مقررے نیټے پورے (پسته) راپریږدی، بیشکه په دے کښے هغه خلقو

لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۴۲﴾ اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

ښے دی | دپاره دهغه قوم | چه فکر کوی | یا نیولی دی دوی | دَ الله نه سیوا

دپاره چه غور او فکر کوی (لوئے) نخښے دی ۔ آیا دوئی دَ الله تعالیٰ نه سیوا نور خلق (ځان له) سفارشیان

شُفَعَآءَ ؕ قُلْ اَوَلَوْ كَانُوْا لَا يَمْلِكُوْنَ شَيْـًٔا وَّلَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۴۳﴾

سفارشیان؟ | ووایه | آیا اگرکه | دوی | مالکان نهٔ وی | دَ څهٔ څیز | او نهٔ عقل لری

جوړ کړی دی، تهٔ ورته ووایه اگرکه دا سفارشیان نه څهٔ اختیار لری او نهٔ په څهٔ پوهیږی۔

قُلْ لِّلّٰهِ الشَّفَاعَةُ جَمِيْعًا ؕ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ

ووایه | دَ الله په اختیار کښے دے | سفارش | ټول | هم دَ دهٔ ده | بادشاهی | دَ اسمانونو

تهٔ ورته ووایه چه سفارش خو ټول هم دَ الله تعالیٰ په اختیار کښے دے، دَ اسمانونو او دَ زمکے بادشاهی یوازے دَ

وَالْاَرْضِ ؕ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۴۴﴾ وَاِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَحْدَهُ

او دَ زمکے | بیا به | هم دَ دهٔ طرف ته | تاسو واپس گرځولے شئ | او هرکله چه | یاد کړے شی | الله | یوازے

هغهٔ ده، او بیا به تاسو ټول هغهٔ ته پسته ورځئ۔ او څهٔ وخت چه یوازے دَ یو خدائے نوم واخستے شی

اشْمَاَزَّتْ قُلُوْبُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ ۚ وَاِذَا

نو نفرت کوی | زړونه | دَ هغه خلقو | چه ایمان نهٔ لری | په آخرت باندِ | او هرکله چه

نو دَ هغه خلقو زړونه زهیر شی چه په آخرت باندِ ایمان نهٔ لری، او هرکله چه

ذُكِرَ الَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ ﴿۴۵﴾ قُلِ اللّٰهُمَّ

ذکر کولے شی | دَ هغو چه | دَ دهٔ نه سیوا دی | نو فوراً دوی | خوشحاله شی | ووایه | اے الله!

دَ خدائے نه سیوا دَ نورو (معبودانو) ذکر کولے شی نو هغه وخت دوئی خوشحاله شی۔ تهٔ ووایه اے الله!

فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ عٰلِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ

پیدا کوونکیه | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | پوهیدونکیه | دَ پټو | او دَ ښکاره وُ

دَ آسمانونو او دَ زمکے پیدا کوونکیه! په پټو او په ښکاره وُ پوهیدونکیه!

اَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِيْ مَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۴۶﴾

هم تهٔ به فیصله کوے | دَ خپلو بندگانو ترمینځه | په هغه څهٔ کښے | په کوم کښے چه دوی | اختلاف کولو

هم تهٔ به دَ خپلو بندگانو په هغه خبرو کښے په کومو کښے چه دوی جګړے کولے فیصله کوے۔

وَلَوْ اَنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ

او که چرے | وی هغو خلقو سره | چه ظلم ئے وکړو | څهٔ چه | په زمکه کښے دی | ټول | او په شان دَ دے

او که دَ ظالمانو (مشرکانو) سره دَ دُنیا ټول مالونه موجود وی او دومره ورسره

مَعَهٗ لَافْتَدَوْا بِهٖ مِنْ سُوْٓءِ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ وَبَدَا

دهٔ سره (نور هم) | نو دوی به ورکړی په بدله کښے | دا | د بد | عذاب نه | په ورځ | د قیامت | او ښکاره به شی

نو هم ۔ نو د قیامت د ورځے د سخت عذاب نه د خلاصیدو د پاره به هغه ټول ورکول وغواړی ، او په دوی

لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مَا لَمْ يَكُوْنُوْا يَحْتَسِبُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَبَدَا

دوی ته | د الله د طرف نه | هغه څهٔ | چه دوی به د هغے گمان نهٔ کولو | او ښکاره به شی

بانډے د الله تعالیٰ د طرف نه هغه (عذاب) ښکاره شی د کوم چه به دوی گمان هم نهٔ وی ۔ او خپل ټول

لَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ

دوی ته | بد پایلے | هغه چه | دوی به کولے | او راگیر به کړی دوی | هغه (عذاب) | چه دوی به هغے پورے

بد کارونه به ورته راڅرگند شی ، او په کوم څیز پورے چه به ئے خندا گانے کولے هغه

يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۴۸﴾ فَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ۡ

ټوقے کولے ۔ | بیا هر کله چه | ورسیږی | انسان ته | څهٔ تکلیف | نو دے مونږ بلی

به ترے نه راتاؤ شی ۔ او څهٔ وخت چه انسان ته تکلیف ورسیږی ، نو زمونږ بلنه کوی

ثُمَّ اِذَا خَوَّلْنٰهُ نِعْمَةً مِّنَّا ۙ قَالَ اِنَّمَآ اُوْتِيْتُهٗ

بیا هر کله چه | مونږ ورکړو دهٔ ته | څهٔ نعمت | له خپل طرف نه | نو دے وائی | بیشکه | ماته راکړے شوے دے

بیا چه مونږ ورته د خپل طرف نه څهٔ نعمت ورکړو ، نو وائی چه دا خو ماته په خپل علم او عقل سره

عَلٰى عِلْمٍ ۭ بَلْ هِيَ فِتْنَةٌ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۹﴾

په پوهه | بلکه | دا | یو آزمیښت دے | او لیکن | اکثر له دوی نه | نهٔ پوهیږی

ملاؤ شوی دی ، (نه) بلکه دا یو آزمیښت دے ، لیکن اکثر خلق (په دے خبره) نهٔ پوهیږی

قَدْ قَالَهَا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ

بیشکه | ویلے ده دا خبره | هغه خلقو چه | له دوی نه وړاندِ وو | پس په کار رانغلل | د دوی

دا خبرے هغه خلقو هم کړے وے چه پخوا تیر شوی دی ، خو خپل کارونه د هغوی هیڅ په کار

مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۵۰﴾ فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا ۭ

هغه څهٔ | چه دوی به کول | پس ورسیدلے دوی ته | بد پایلے | د هغه څهٔ چه دوی کړی وے

رانغلل ۔ بلکه خپل بد عملونه پرے ټول راپریوتل

وَالَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْ هٰٓؤُلَاۗءِ سَيُصِيْبُهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا ۙ

او هغه خلق چه | ظلم ئے وکړو | له دوی نه | زر به ورسیږی دوی ته | بد پایلے | د هغه څهٔ چه دوی کړی دی

او په دوئ کښے څوک چه ظالمان دی په هغوئ به هم خپل بد عملونه (هرومرو) راپریوزی

وَمَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۵۱﴾ اَوَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ

او نهٔ دی دوی | عاجزه کوونکی | آیا دوی نهٔ پوهیږی | چه بیشکه | الله | فراخه کوی

او دوئ (الله تعالیٰ په خپلو تدبیرو نو سره) عاجزه کولے نهٔ شی ۔ آیا دوئ ته دا معلومه نهٔ ده چه الله تعالیٰ د چا په حقله وغواړی

الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ

رزق | دَ پاره دَ هغه چا | چه ئې وغواړي | او تنګوي | بیشکه | په دے کښې | نخښے دي | دَ هغه قوم دَ پاره

روزي ورله فراخه یا لنډه تنګه کړي - په دے کښې دَ ایماندارو دَ پاره ډیرے نخښے

يُّؤْمِنُوْنَ ۝۵۲ قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓي اَنْفُسِهِمْ

چه ایمان لري | ووایه | اے زما بندګانو! | کومو چه | زیاتے وکړو | په خپلو ځانونو باندِ

دي. ته (زما دَ طرف نه خلقو ته) ووایه چه اے زما بندګانو! کومو چه په خپلو ځانونو باندِ زیاتے کړے دے

لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ

مه نا اُمیده کیږئ | له رحمت نه | دَ الله | بیشکه الله | معاف کوي | ګناهونه

دَ الله تعالیٰ دَ رحمت نه مهٔ مایوسه کیږئ - الله تعالیٰ به ستاسو ټول ګناهونه معاف

جَمِيْعًا ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝۵۳ وَاَنِيْبُوْٓا اِلٰى رَبِّكُمْ

ټول | بیشکه هم دے دے | بخښونکے | مهربان | او رجوع وکړئ | دَ خپل رب طرف ته

کړي بیشکه الله ډیر بخښونکے زیات رحم کوونکے دے - او تاسو خپل رب ته رجوع وکړئ،

وَاَسْلِمُوْا لَهٗ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ الْعَذَابُ ثُمَّ

او حکم منئ | دَ دهٔ | وړاندِ له دے نه | چه راشي په تاسو | عذاب | بیا به

او دَ هغهٔ حکم منئ له دِے نه وړاندِ چه (ستاسو په غفلت) په تاسو باندِ عذاب راشي. بیا به (هغه وخت)

لَا تُنْصَرُوْنَ ۝۵۴ وَاتَّبِعُوْٓا اَحْسَنَ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ

مدد نهٔ شي کیدے ستاسو | او پیروي وکړئ | دَ ډیر ښهٔ | هغه څهٔ | چه نازل کړے شول | ستاسو طرف ته

ستاسو مدد نهٔ شي کولے . او (اے خلقو!) دَ خپل رب رالیږلي ښائسته حکمونو ته

مِّنْ رَّبِّكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ الْعَذَابُ بَغْتَةً

ستاسو دَ رب له طرف نه | له دِے نه وړاندِ | چه | راشي په تاسو باندِ | عذاب | ناګهانه

غوږ منئ ، له دے نه وړاندِ چه په تاسو ناګهانه عذاب راشي

وَّاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ۝۵۵ اَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ يّٰحَسْرَتٰى عَلٰى مَا

او تاسو ته | خبر هم نهٔ وي | چه وُبه وائي | نفس | هائے افسوس! | په هغه څهٔ

او تاسو پرے خبر هم نهٔ یئ . (ځکه) چه چرته بو نفس دا وُ (نهٔ) وائي چه افسوس دے په هغه

فَرَّطْتُّ فِيْ جَنْۢبِ اللّٰهِ وَاِنْ كُنْتُ لَمِنَ السّٰخِرِيْنَ ۝۵۶

چه ما کوتاهي وکړه | دَ الله په حق کښې | او دا چه وَم زهٔ | له مسخرو کوونکو نه

کوتاهئ چه ما دَ الله تعالیٰ په حق کښې کوله او ما خو صرف ټوقې کولے .

اَوْ تَقُوْلَ لَوْ اَنَّ اللّٰهَ هَدٰىنِيْ لَكُنْتُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ ۝۵۷

یا او به وائي چه | که چرے | الله | هدایت کړے وے ماته | نو خامخا به زهٔ وَم | له پرهیزګارانو نه

یا دا به ووائي چه که الله تعالیٰ ماته هدایت کړے وے نو زهٔ به هم په پرهیزګارانو کښے شامل وَم

أَوْ تَقُولَ حِينَ تَرَى الْعَذَابَ لَوْ أَنَّ لِي كَرَّةً
یا | وُبه وائی | په هغه وخت کښې | چه وويني | عذاب | چه کاش ! | ماله وے | واپس تلل
یا چه عذاب وويني نو دا به ووائی چه که زهٔ (دنیا ته) واپس لاړم نو په نيکانو

فَأَكُونَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٨﴾ بَلَىٰ قَدْ جَاءَتْكَ آيَاتِي فَكَذَّبْتَ
چه شم زهٔ | له نيکانو خلقونه | ولے نه | بیشکه راغلی وو تاته | زما آیتونه | پس دروغ وګڼل تا
کښې به شامل شم - (الله به وفرمائی) ولے نه ! زما آیتونه تاته در رسيدلی وو ، مګر تا هغه دروغ

بِهَا وَاسْتَكْبَرْتَ وَكُنْتَ مِنَ الْكَافِرِينَ ﴿٥٩﴾ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ
هغه | او لوئی وُکړه تا | اوشوے ته | له کافرانو نه | او په ورځ | دَ قيامت به
وګڼل او تکبر دِ وکړو او په کافرانو کښې شامل پاتے شوے - او دَ قيامت په ورځ به ته

تَرَى الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى اللَّهِ وُجُوهُهُمْ مُسْوَدَّةٌ ۚ أَلَيْسَ
ووينې ته | هغه خلق چه | دروغ به ئے تړل | په الله باندِ | چه مخونه دَ هغوئ به | تور شوی وی | آیا نهٔ دے
دَ هغه کسانو مخونه تک تور ووينې چه په الله تعالیٰ ئے دروغ تړل ، آیا دَ

فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِلْمُتَكَبِّرِينَ ﴿٦٠﴾ وَيُنَجِّي اللَّهُ الَّذِينَ اتَّقَوْا
په دوزخ کښې | ځائے | دَ کبرژنو | او نجات به ورکړی | الله | هغوته چه | پرهيزګاری ئے وکړه
مغرورانو ټيکاڼه په دوزخ کښې نهٔ دے ؟ او چاچه (دَ کفر او دَ ګناه نه) ځان بچ کړلو الله تعالیٰ به هغوئ له

بِمَفَازَتِهِمْ لَا يَمَسُّهُمُ السُّوءُ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦١﴾ اللَّهُ
په کاميابه کيدو دَ دوی | نهٔ به رسی دوی ته | څهٔ بدی | او نهٔ به دوی | غمژن وی | الله
په کاميابئ سره (دَ دوزخ نه) نجات ورکړی (هلته) به نهٔ هغوئ ته څهٔ تکليف رسيږی او نهٔ به غمژن کيږی - هم الله تعالیٰ

خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ ۖ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ ﴿٦٢﴾ لَهُ
پيدا کوونکے | دَ هر څيز دے | او دے | دَ هر څيز | نګهبان دے | هم دهٔ سره دی
دَ هر څيز پيدا کوونکے دے ، او هم هغه په هر څيز باندِ نګران دے - دَ آسمانونو او دَ

مَقَالِيدُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۗ وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ
ګُنجيانے | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او هغه خلق | چه انکار ئے وکړو | دَ آيتونو دَ الله
زمکے ګُنجيانے هم دَ هغهٔ په اختيار کښې دی. او څوک چه دَ الله تعالیٰ دَ آيتونو نه انکار کوی

أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٦٣﴾ قُلْ أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَأْمُرُونِّي
هم دغه خلق | نقصان موندونکی دی | ووايه | نو آيا دَ الله نه سيوا | تاسو ماته حکم کوئ
هم هغوئ به تاوانيان پاتے شی - (اے پيغمبره !) ته ورته ووايه چه اے جاهلانو ! آيا تاسو بيا هم

أَعْبُدُ أَيُّهَا الْجَاهِلُونَ ﴿٦٤﴾ وَلَقَدْ أُوحِيَ إِلَيْكَ
چه زهٔ عبادت وکړم | اے | جاهلانو ! | او بيشکه | وحی رالیږلے شوے ده | ستا طرف ته
ماته دَ نور چا دَ عبادت فرمائشونه کوئ ؟ او بيشکه چه تاته هم او ستا نه وړاندِ نورو پيغمبرانو

وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ

او دَ هغه خلقو طرف ته | چه وړاندې له تا نه وو | که چرے | تا شرک وکړو | نو خامخا به برباد شي

ته هم دا وحي لیږلے شوے ده چه (اے بنیادمه!) که تا شرک وکړو نو ټول عملونه به دِ

عَمَلُكَ وَلَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝٦٥ بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ

ستا عمل | او خامخا به شے ته | له نقصان موندونکو نه | (نه) بلکه | دَ الله | عبادت وکړه

عبث لاړ شي او په تاوان کښے به وغورزیږے ، ته خو بس یوازے دَ الله تعالیٰ عبادت کوه

وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ۝٦٦ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ ۖ

او شه ته | له شکرګزارو نه | او قدر ونه کړو دوی | دَ الله | لکه چه حق دے | دَ دهٔ دَ قدر

او (دَ هغهٔ) په شکرګزارو کښے شامل شه ، خو دِ دے خلقو خدائے هغسے لوئے ونه ګڼړلو لکه چه پکار دے .

وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌۢ

او (دا) زمکه | ټوله به | دَ دهٔ په موټه کښے وی | په ورځ دَ قیامت | او آسمانونه به | را نغښتے شوی وی

سره دَ دِے چه ټوله زمکه به دَ قیامت په ورځ دَ هغهٔ په موټی کښے وی او ټول آسمانونه به دَ هغهٔ په ښی لاس

بِيَمِيْنِهٖ ۭ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝٦٧ وَنُفِخَ

دَ دهٔ په ښی لاس کښے | دے پاک دے | او ډیر لوئے دے | له هغه څه نه | چه دوی ئے شریک جوړوی | او پوکے به ووهلے شي

کښے را نغښتی وی ، هغه پاک دے او دَ دوئ جوړ کړی شرک نه ډیر اوچت دے ، او شپیلئ به پوک وهلے

فِى الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ

په شپیلئ کښے | نو بے هوشه به شي | هر هغه څوک | چه په آسمانونو کښے دی | او هر هغه څوک | چه په زمکه کښے دی

شي نو دَ آسمانونو او زمکے ټول مخلوق به بے هوشه پریوزی ،

اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ۭ ثُمَّ نُفِخَ فِيْهِ اُخْرٰى فَاِذَا هُمْ قِيَامٌ

مګر | څوک چه وغواړی | الله | بیا به | پوکے ووهلے شي | په دے کښے | دویم ځل | نو ناګهانه به دوی | ولاړ وی

څوک چه الله (بچ ساتل) وغواړی ، بیا به په دویم ځل شپیلئ پوک وهلے شي ، نو ټول به راپاڅی چه سم دم

يَّنْظُرُوْنَ ۝٦٨ وَاَشْرَقَتِ الْاَرْضُ بِنُوْرِ رَبِّهَا وَوُضِعَ

ګوری به | او روښانه به شي | زمکه | په رڼړا | دَ رب خپل | او | کیږد به ښودلے شي

به ګوری . او زمکه به دَ خپل رب په رڼړا باندِ روښانه شي ، او عملنامه به (مخامخ)

الْكِتٰبُ وَجِاىْٓءَ بِالنَّبِيّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ وَقُضِىَ بَيْنَهُمْ

کتاب | او را به وستلے شي | پیغمبران | او ګواهان | او فیصله به وکړے شي | دَ دوئ ترمینځه

کیښودے شي ، او پیغمبران او (نور) ګواهان به حاضر کړے شي ، او دَ خلقو ترمینځه به په انصاف

بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝٦٩ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا

په انصاف سره | او په دوئ به | ظلم نه شي کولے | او پوره به ورکړے شي | هر نفس ته | هغه څه چه

سره فیصله وکړے شي او دَ ذرے هومره ظلم به پرے نه کیږی . او هر سړی ته به دَ خپلو عملونو پوره پوره

عَمِلَتْ وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۰﴾ وَسِيْقَ الَّذِيْنَ

چه دهٔ عمل کړي دي | او دے | ښهٔ پوهه دے | په هغه څهٔ | چه دوی ئې کوی | او روان به کړے شی | هغه خلق چه

بدله ورکړے شی او الله تعالیٰ ته دَ دوئ ټول کارونه په ښهٔ شان معلوم دی - او کافران به ټولی ټولی دوزخ

كَفَرُوْٓا اِلٰى جَهَنَّمَ زُمَرًا ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْهَا فُتِحَتْ

کافران دی | طرف دَ دوزخ ته | ډلے ډلے | تردے چه | هرکله راشی دوی هغے ته | نو پرانستلے شی

طرف ته راښکلے شی ، څهٔ وخت چه دوزخ ته ورنزدے شی نو دَ هغے دروازے

اَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَآ اَلَمْ يَاْتِكُمْ رُسُلٌ

دروازے دَ هغے | او وُبه وائی | دوی ته | نګهبانان دَ هغے | آیا نهٔ ؤو راغلی تاسو ته | پیغمبران

به پرانستلے شی ، او دَ دوزخ محافظان به ورته ووائی چه آیا تاسو ته دَ خپل قوم نه پیغمبران

مِّنْكُمْ يَتْلُوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ رَبِّكُمْ وَيُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ

له تاسونه | چه لوستل به ئے | تاسو باندِ | آیتونه | دَ رب ستاسو | او وَیرول به ئے تاسو | له ملاقات

راغلی نه ؤو چه دَ خپل رب آیتونه ئے درته آوَروَلی وے او تاسوئے دَ دے ورځے دَ راتلو نه

يَوْمِكُمْ هٰذَا ؕ قَالُوْا بَلٰى وَلٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ

دَ دے ورځے ستاسونه | دوی به ووائی | ولے نه | لیکن | ثابت شو | حکم | دَ عذاب

ویرولی وے ؟ هغوئ به ووائی ولے نه! خو دَ عذاب وعده آخر په کافرانو باندِ پوره

عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۷۱﴾ قِيْلَ ادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ

په کافرانو باندِ | وُبه وئیلے شی | داخل شئ | په دروازو کښے | دَ دوزخ | همیشه به یئ | په دے کښے

شوه - ورته به ووئیلے شی چه (ځئ اوس) دَ دوزخ په دروازو ورننوځئ همیشه به پکښے پراته یئ

فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿۷۲﴾ وَسِيْقَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا

بس بَدْ | ځائے دے | دَ کبرژنو | او روان به کړے شی | هغه خلق چه | ویریدل به

غرض دا چه دَ مغرورو کسانو ټیکاؤنړه ډیره خرابه ده. او څوک چه دَ خپل رب (دَ نیولو) نه ویریدل هغوئ

رَبَّهُمْ اِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءُوْهَا

دَ خپل رب نه | جنت طرف ته | ډلے ډلے | تردے چه | هر کله | دوی راشی هغے ته

به ټولی ټولی جنّت ته روان کړے شی. څهٔ وخت چه دَ هغے خواته وُرسیږی

وَفُتِحَتْ اَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ

او پرابه نستلے شی | دروازے دَ هغے | او وبه وئیلے شی | دوی ته | نګرانان دَ هغے | سلام دِ وی | په تاسو باندِ

او دروازے پرانستلے شی او دَ هغے محافظان به ورته ووائی چه په تاسو دِ سلام وی

طِبْتُمْ فَادْخُلُوْهَا خٰلِدِيْنَ ﴿۷۳﴾ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ

خوشحاله شوئ تاسو | پس داخل شئ دے ته | همیشه به یئ | او دوی به وائی | ټول تعریفونه | الله دَ پاره دی | چا چه

تاسو ښهٔ خلق یئ پس په دِ دے کښے همیشه دَ پاره ورننوزئ - هغوئ به ووائی چه دَ الله تعالیٰ ډیر شکر دے چه موږ

صَدَقَنَا وَعْدَهٗ وَاَوْرَثَنَا الْاَرْضَ نَتَبَوَّاُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ

رښتیا کړله مونږ سره | خپله وعده | او وارثان ئې کړلو مونږه | دَ دې زمکې | چه مونږ ديره شو | په جنت کښې | کوم ځائې چه

سره ئې خپله وعده په رښتیا پوره کړه او مونږه ئې دَ دې زمکې مالکان کړو چه په جنّت کښې کوم ځائې غواړو هلته به

نَشَآءُ ۚ فَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿٧٤﴾ وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّيْنَ

مونږ غواړو | پس ځۀ ښۀ | اجر دے | دَ عمل کوونکو | او ته به وو وینې | فرښتې | راتاؤ شوے

ديره شو غرض دا چه دَ ښۀ عمل کوونکو بدله هم ښۀ ده ۔ او ته به فرښتې وينې چه دَ عرش نه گير چاپيره به

مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ ۚ وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ

چاپیره | دَ عرش نه | تسبيح به وائې | دَ ستائنې سره | دَ رب خپل | او فيصله به وُکړے شي | دَ دوئ ترمينځه

ئې حلقه اچولے وی دَ خپل رب تسبيح او حمد به وائې او (په دغه ورځ به) دَ خلقو ترمينځه

بِالْحَقِّ وَقِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٧٥﴾

په انصاف سره | او وُبه وئيلے شي | ټول تعريفونه | الله دَ پاره دی | چه رب دے | دَ ټولو جهانونو

په انصاف سره فيصله وکړے شي او وُبه وئيلے شي چه ټول تعريفونه الله دَ پاره دی چه دَ ټولو جهانونو رب دے ۔

سُوْرَةُ الْمُؤْمِنِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | خَمْسٌ وَّثَمَانُوْنَ اٰيَةً وَّتِسْعُ رُكُوْعَاتٍ

سوره مومن په مکه کښې نازل شوا وپه | شروع کوم په نامه دَ الله چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | دے کښې ۸۵ آیتونه او ۹ رکوع گانې دی

دَ الله په نامه شروع کوم چه ډیر مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

حٰمٓ ﴿١﴾ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿٢﴾

حٰمٓ | نازل شوے دے | دا کتاب | دَ الله دَ طرف نه | چه ډير غالب | پوهه دے ۔

حٰمٓ دا کتاب (یعنی قران) دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نازل شوے دے چه زبردست دے په هر څيز پوهه دے

غَافِرِ الذَّنْۢبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيْدِ الْعِقَابِ ۙ ذِي الطَّوْلِ ؕ

بخښونکے | دَ گناه | او | قبلوونکے | دَ توبې | سخت عذاب ورکوونکے | لوئې فضل والا

گناه بخښونکے او توبه قبلوونکے په سزا کښې سخت او ډير لوئې فضل والا دے

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ﴿٣﴾ مَا يُجَادِلُ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ

نشته دے بل معبود | دَ دهٔ نه سيوا | هم دَ دهٔ طرف ته | واپس تلل دی | جګړه نۀ کوی | په آيتونو کښې | دَ الله

دَ هغۀ نه سيوا بل معبود نشته، هم هغۀ ته (دَ ټولو) واپس تلل دی ۔ دَ الله تعالیٰ دَ آيتونو په باره کښې هم هغه خلق

اِلَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَلَا يَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِي الْبِلَادِ ﴿٤﴾

مګر | هغه خلق چه | کافران دی | پس دوکه دې نۀ کړی تا له | دَ دوی تلل راتلل | په ښارونو کښې

جګړے کوی کوم چه کافران دی، نو ته په دے غلط مۀ شې چه دوئ په ښارونو کښې (خوشحاله خوشحاله) اوړی راوړی

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّالْاَحْزَابُ مِنْ بَعْدِهِمْ ۠ وَهَمَّتْ

دروغ ګڼلی وو | دَ دوئ نه وړاندې | قوم | دَ نوح | او نورو ډلو | پس له دوئ نه | او اراده وکړه

دَ دوئ نه وړاندې دَ نوح قوم او دَ هغوئ نه پس نورو ډلو (پيغمبران) دروغژن وګڼړل او هر اُمت دَ خپل

كُلُّ أُمَّةٍۭ بِرَسُولِهِمْ لِيَأْخُذُوهُ وَجَٰدَلُوا۟ بِالْبَٰطِلِ

هر يو | أمّت | خپل پيغمبر سته | چه ونيسي هغه | او دوى جګړے کوی | دَ دروغو په خبرو

پيغمبر دَ بندى کولو اراده وکړه او برناحقه جګړے ئے ورته رابرسيره کړے

لِيُدْحِضُوا۟ بِهِ الْحَقَّ فَأَخَذْتُهُمْ ۖ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ⑤

دَ پاره دَ دے چه ناکامه کړی | په دے سره | حق | پس ما ونيول هغوئ | نو څنګه | وو | زما عذاب

چه په دے سره (دين دَ) حق ناکامه کړی نو ما هغوئ راونيول نو ګوره څنګه عنه سزا م ورکړه.

وَكَذَٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَنَّهُمْ

او دغه شان | ثابته شوه | خبره | ستا دَ رب | په هغه خلقو چه | کافران دی | بيشکه هم دوی

او دغه شان ستا دَ رب خبره په کافرانو باندِ ثابته شوه چه هغوئ

أَصْحَٰبُ النَّارِ ⑥ الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهُۥ

دوزخيان دی | کومو (فرښتو) چه | اوچت کړے دے | عرش | او کوم چه | دَ دے نه ګير چاپيره دی

دوزخيان دی. او هغه فرښتے چه عرش ئے اوچت کړے دے او کوم چه ترے نه ګير چاپيره دی

يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيُؤْمِنُونَ بِهِۦ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ

دوی تسبيح وائی | دَ خپل رب په ستائنے سره | او ايمان راوړی | په دهٔ | او بخښنه غواړی | دَ هغه خلقو دَ پاره

هغوئ تو لے دَ خپل رب تسبيح او تعريف بيانوی او په هغهٔ ايمان راوړی او دَ مؤمنانو په حقله (داسے) بخښنه

ءَامَنُوا۟ ۚ رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَىْءٍ رَّحْمَةً وَعِلْمًا فَاغْفِرْ

چه مؤمنان دی | چه اے زمونږه ربه! | او تا احاطه کړے دَه | دَ هر څيز | په خپل رحمت | او علم سره | پس معاف کړه

غواړی چه اے زمونږه ربه! ستا رحمت او ستا علم په هر څهٔ باندِ راخور شوے دے ، نو چا چه توبه وکړه

لِلَّذِينَ تَابُوا۟ وَاتَّبَعُوا۟ سَبِيلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ

هغه کومو چه | توبه وکړه | او پيروی ئے وکړه | ستا دَ لارے | او بچ کړه دوی | له عذاب

او ستا په لار روان دی هغوئ وبخښه ، او دَ دوزخ دَ عذاب نه

الْجَحِيمِ ⑦ رَبَّنَا وَأَدْخِلْهُمْ جَنَّٰتِ عَدْنٍ الَّتِى

دَ دوزخ نه | اے زمونږه ربه! | او داخل کړه دوی | په باغونو کښے | دَ هميشه اوسيدو | هغه دَ کومو چه

ئے بچ کړه ، اے زمونږه ربه! ته هغوئ دَ هميشه اوسيدو په باغونو کښے ورننباسه، دَ کومو چه

وَعَدتَّهُمْ وَمَن صَلَحَ مِنْ ءَابَآئِهِمْ وَأَزْوَٰجِهِمْ وَذُرِّيَّٰتِهِمْ ۚ

تا وعده کړے دَه دوی سره | او هغه څوک (هم) | چه صالحان دی | له پلارانو دَ دوی نه | او له بيبيانو دَ دوی نه | او له اولاد دَ دوی نه

ورسره تا وعده کړے دَه او هغه هم چه دَ هغوئ په پلارانو ، بيبيانو او اولاد کښے صالحان دی

إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ⑧ وَقِهِمُ السَّيِّـَٔاتِ ۚ وَمَن

بيشکه ته | ډير زبردست | حکمت والا يئے | او وساته دوی | له تکليفونو نه | او هغه څوک چه

بيشکه چه ته زبردست يئے دَ حکمت خاوند يئے او هغوئ دَ هر قسم تکليفونو نه محفوظ وساته او تا چه په دغه

وقف لازم
وقف النبي صلى الله عليه وسلم

تِقِ السَّيِّاٰتِ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهٗ ؕ وَذٰلِكَ هُوَ

وُساتل تا | له تکلیفونو نه | په دغه ورځ | نو بیشکه | تا په هغهٔ رحم وکړو | او هم دا ده

ورځ څوک دَ تکلیف نه بچ وُساتلو نو هغهٔ سره دِ غټه مهربانی وُکړه او دا ډیره لویه

الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝۹ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُنَادَوْنَ لَمَقْتُ

کامیابی | لویه | بیشکه | کوم خلق | چه کافران دی | دوئ ته به آواز وکړے شی | چه ناراضګی

کامیابی ده ۔ بیشکه کومو خلقو چه کفر وکړو هغوئ ته به دا آواز وکړے شی چه لکه څنګه

اللّٰهِ اَكْبَرُ مِنْ مَّقْتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ اِذْ تُدْعَوْنَ اِلَى الْاِيْمَانِ

دَالله | زیاته لویه ده | ستاسو له ناراضګئ نه | په خپل ځان باندِ | هرکله چه به | تاسو بللے شوئ | دَ ایمان طرف ته

(نن) ستاسو دَ ځان نه نفرت دے دَدے نه زیات نفرت به درنه خدائے کولو چه تاسو به ایمان ته رابللے شوئ او تاسو به

فَتَكْفُرُوْنَ ۝۱۰ قَالُوْا رَبَّنَآ اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَ اَحْيَيْتَنَا

نو تاسو به انکار کولو | دوئ به وائی | اے زمونږ ربه! | تا مړګ راکړو مونږ ته | دوه ځله | او ژوندی کړو تا مونږ

انکار کولو ۔ هغوئ به وائی چه اے زمونږه ربه! مونږ دِ دوه ځله مړهٔ وُساتلو او دوه ځله دِ راژوندی

اثْنَتَيْنِ فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوْبِنَا فَهَلْ اِلٰى خُرُوْجٍ مِّنْ سَبِيْلٍ ۝۱۱

دوه ځله | پس اقرار وکړو مونږ | په خپلو ګناهونو | پس آیا | بهر ته دَ راوتلو | څه لار (شته دے)؟

کړو ، نو اُوس مونږ دَ خپلو خطاګانو اقرار کوُو ، نو آیا اوس (دَدے عذاب نه دَ بچ) وتلو څهٔ لار شته؟

ذٰلِكُمْ بِاَنَّهٗٓ اِذَا دُعِيَ اللّٰهُ وَحْدَهٗ كَفَرْتُمْ ۚ وَاِنْ يُّشْرَكْ بِهٖ

دا په تاسو | ځکه دے چه | هرکله به | بللے شو | الله | یو | نو تاسو به انکار کولو | او که چرے شرک به کولے شو دهٔ سره

دا ځکه (سزاد رکولے شی) چه کهٔ صرف دَ الله تعالیٰ نوم به اخستے شو نو تاسو به ترے نه انکار کولو. او کهٔ څوک به ورسره شریکولے

تُؤْمِنُوْا ؕ فَالْحُكْمُ لِلّٰهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيْرِ ۝۱۲ هُوَ الَّذِيْ يُرِيْكُمْ

نو منلو به تاسو | پس حکم (خو) | هم دَ الله دے | چه ډیر لوئے | اُوچتے مرتبے والا دے | دے هغه ذات دے | چه ښائی تاسو ته

شو نو بیا به مو منلو نو اُوس دا دَ الله تعالیٰ فیصله ده چه ډیر لوئے دے او دَ اُوچتے مرتبے خاوند دے. الله هغه ذات دے چه تاسو ته

اٰيٰتِهٖ وَيُنَزِّلُ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ رِزْقًا ؕ وَمَا يَتَذَكَّرُ اِلَّا مَنْ

خپلے نخښے | او نازلوی | تاسو دَ پاره | له آسمان نه | رزق | او نصیحت نهٔ قبلوی | مګر هغه څوک

خپلے نخښے ښائی ، او دَ بره نه درله روزی رالیږی ، او نصیحت خو بس هغه څوک قبلوی

يُّنِيْبُ ۝۱۳ فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ وَلَوْ كَرِهَ

چه رجوع کوی | پس یاد کړئ | الله | خالص کونکے | دَ دهٔ دَ پاره | عبادت | اګر که نهٔ خوښوی

چه الله ته رجوع کوی ، نو تاسو په سمه سُوچه عقیده باندِ خدائے ته دُعا کوئ اګر که په کافرانو

الْكٰفِرُوْنَ ۝۱۴ رَفِيْعُ الدَّرَجٰتِ ذُو الْعَرْشِ ۚ يُلْقِي الرُّوْحَ

کافران | (دے) اُوچتو | درجو والا | دَ عرش مالک دے | اچوی | روح

بده لګی ۔ هغه دَ مرتبو اوچتولو نکے دے دَ عرش مالک دے ۔ هغه چه په خپلو بندګانو کښے

مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ﴿۱۵﴾

په خپل حکم سره | په چا چه | دے غواړی | له خپلو بندګانو نه | دَ پاره دَدِے چه ووېروی | له ورځے دَ ملاقات نه

په چا ئے غواړی نو په هغهٔ باندِ خپل حکم رالیږی چه هغه (خلق) دَ ملاقات (دَحشر) دَ ورځے نه ووېروی

يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ ۚ لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ شَىْءٌ ؕ لِمَنِ

په کومه ورځ چه به دوی | بهر ته راوځی | پټ به نهٔ وی | په الله باندِ | دَ دوی | (څهٔ) څیز | چا دَ پاره

په کومه ورځ چه به ټول خلق (له قبرونو نه) بهر راوځی ، دَ الله تعالیٰ نه به دَ دوئ هیڅ خبره پټه نهٔ وی (تپوس به کولے شی)

الْمُلْكُ الْيَوْمَ ؕ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿۱۶﴾ اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ

حکومت دے | نن ورځ | الله دَ پاره دے | چه یو ازے | ډیر غالب دے | نن ورځ به | بدله ورکولے شی | هر

نن ورځ دَ چا حکومت دے ؟ بس صرف دَ الله حکومت دے چه یو دے (او) غالب دے ۔ نن به هر سړی ته دَ خپل

نَفْسٍۢ بِمَا كَسَبَتْ ؕ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ

نفس ته | دَ هغه څهٔ چه | دهٔ کړی دی | نشته دے هیڅ ظلم | نن ورځ | بیشکه | الله | ډیر زر

عمل بدله ورکړے شی ، (او په چا باندِ به) نن هیڅ زیاتے نهٔ کیږی ، یقیناً الله تعالیٰ ډیر زر حساب

الْحِسَابِ ﴿۱۷﴾ وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْاٰزِفَةِ اِذِ الْقُلُوْبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ

حساب اخستونکے دے | او ووېروه دوی | دَ ورځے دَ نزدے راتلونکے نه | هر کله چه به زړونه | ترخولے راشی

اخستونکے دے ۔ او (اے پیغمبره ! تهٔ) دوئ دَ نزدے راتلونکے ورځے دَ مصیبت نه ووېروه چه زړونه به ترخولے راشی

كٰظِمِيْنَ ؕ مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ حَمِيْمٍ وَّلَا شَفِيْعٍ يُّطَاعُ ؕ ﴿۱۸﴾

دَ غم په وجه | نهٔ به وی | دَ ظالمانو | څوک دوست | او نهٔ څوک سفارشی | چه دَ دهٔ خبرے ومنلے شی

او ساه کلکے به (دَ غم نه) لنډے نیکے شی او (په دغه ورځ به) دَ ظالمانو نهٔ څوک دوست وی او نهٔ څوک سفارشی چه دَ هغهٔ خبره ومنلے شی

يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْاَعْيُنِ وَمَا تُخْفِى الصُّدُوْرُ ﴿۱۹﴾ وَاللّٰهُ

دے پوهه دے | په خیانت | دَ سترګو | او په هغه څهٔ | چه پټوی ئے | سینے | او الله به

الله تعالیٰ دَ سترګو په غلا او دَ زړونو په پټو رازونو ښهٔ پوهه دے ۔ او الله تعالیٰ به

يَقْضِىْ بِالْحَقِّ ؕ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَقْضُوْنَ

فیصله وکړی | په انصاف سره | او هغه چه | دوی ئے بلی | دَ دهٔ نه سیوا | دوی فیصله نهٔ شی کولے

په انصاف سره فیصله وکړی ، او دوئ چه دَ هغهٔ نه سیوا دَ نور چا بلنه کوی نو هغوئ هیڅ فیصله

بِشَىْءٍ ؕ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ﴿۲۰﴾ اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا

دَ هیڅ څیز | بیشکه | الله | هم دے دے | آورېدونکے | لیدونکے | آیا دوی نهٔ دی ګرځیدلی

نهٔ شی کولے ، یقیناً الله تعالیٰ هر څهٔ وینی (او) ګوری ۔ آیا دا خلق په زمکه کښے

فِى الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ كَانُوْا

په زمکه کښے | چه دوی وګوری | چه څنګه | شو | انجام | دَ هغو خلقو چه | وو

ګرځیدلی نهٔ دی چه دُ ګوری چه دَ دوئ نه دَ پخوا خلقو (چه دَ حق نه منکر وو) انجام

مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَانُوْا هُمْ اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّاٰثَارًا فِى الْاَرْضِ

دِ دوی نه | ﺫُو هغوئ | زيات سخت | له دوئ نه | په طاقت کښې | او په نخښو کښې | په زمکه کښې

هغوئ دَ دوئ نه په طاقت کښې او دَ زمکې په مخ په نخښو پريښودلو کښې زيات وُو نو څهٔ شو ؟

فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ؕ وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ

پس ونيول هغوئ | الله | په ګناهونو دَ هغوئ | او نهٔ وو | هغوئ دَ پاره | دَ الله نه | هيڅوک

نو الله تعالیٰ په خپلو ګناهونو کښې راوُونيول ، او هيڅ دَ الله تعالیٰ (دَ عذاب) نه بچ نهٔ

وَّاقٍ ۝۲۱ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَكَفَرُوْا

بچ کوونکے | دا | ځکه چه | راتلل به هغوئ ته | پيغمبران دَ هغوئ | په نخښو سره | نو هغوئ به انکار کولو

کړل - دا ځکه چه هغوئ ته به خپلو پيغمبرانو ښکاره راوړلے نخښې خو هغوئ به ترې نه انکار کولو

فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ ؕ اِنَّهٗ قَوِيٌّ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝۲۲ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا

پس ونيول هغوئ لره | الله | بيشکه دے | توانا | سخت عذاب ورکولو والا دے | او بيشکه رالیږلے وو مونږ

نو الله تعالیٰ راوُونيول يقيناً هغه ډير قوی دے سخت عذاب ورکوونکے دے ، او مونږ موسیٰ دَ

مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ۝۲۳ لا اِلٰى فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ

موسیٰ | په خپلو نخښو سره | او په دليل | ښکاره سره | طرف دَ فرعون | او هامان

خپلو نخښو او دَ ښکاره دليل سره وُلیږلو - (يعنی مونږ دوئ) فرعون، هامان او قارون ته (پيغام دَ حق

وَقَارُوْنَ فَقَالُوْا سٰحِرٌ كَذَّابٌ ۝۲۴ فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ

او قارون ته | نو دوئ ووئيل | جادوګر دے | غټ دروغژن | بيا هر کله | چه دے راغے دوی ته | په حق دين سره

سره وُلیږل) نو هغوئ ووئيل چه دا جادوګر دے، غټ دروغژن دے - نو څهٔ وخت چه موسیٰ زمونږ دَ طرف نه حق دين

مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا اقْتُلُوْٓا اَبْنَآءَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ

زمونږ له طرف نه | نو دوی ووئيل | وُوژنئ | ځامن | دَ هغه خلقو | چه ايمان ئې راوړو | دَ دهٔ سره

راوړو ، نو هغوئ ووئيل چه کومو خلقو دَ دهٔ سره (په الله باندې) ايمان راوړے دے دَ هغوئ ځامن ووژنئ

وَاسْتَحْيُوْا نِسَآءَهُمْ ؕ وَمَا كَيْدُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِىْ ضَلٰلٍ ۝۲۵

او ژوندئ پريږدئ | دَ دوئ ښځې | او نهٔ دے | تدبير | دَ کافرانو | مکر | ناکام

او لونړه ئې ژوندئ پريږدئ ، او دَ کافرانو تدبير بے اثره لاهو -

وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُوْنِىْٓ اَقْتُلْ مُوْسٰى وَلْيَدْعُ رَبَّهٗ ج اِنِّىْٓ

او ووئيل | فرعون | ما پريږدئ | چه زهٔ وُوژنم | موسیٰ | او دے دِ راوُغواړي | خپل رب | بيشکه زهٔ

او فرعون ووئيل چه ما پريږدئ چه موسیٰ وُوژنم او بيا دِ هغه خپل رب (مدد له) راوُغواړي، ما سره

اَخَافُ اَنْ يُّبَدِّلَ دِيْنَكُمْ اَوْ اَنْ يُّظْهِرَ فِى الْاَرْضِ

ويريږم | چه | دے به بدل کړي | دين ستاسو | يا دا چه | دے به ښکاره کړي | په زمکه کښې

دا فکر دے چه ستاسو دين به بدل کړي يا به په ملک کښې (بل څهٔ) خرابي

الْفَسَادَ ﴿٢٦﴾ وَقَالَ مُوسَىٰ إِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُم

فساد | او وُوئیل | موسیٰؑ | (چه) بیشکه ما پناه اخستے ده | دَ خپل رب | او ستاسو دَ رب سره

راپیدا کړی ۔ موسیٰؑ ووئیل ، چه زهٔ دَ خپل رب او ستاسو دَ رب پناه غواړم

مِّن كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴿٢٧﴾ وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ

دَ هر | کبرژن نه | چه ایمان نهٔ لری | په ورځے | دَ حساب | او وُوئیل | یو سړی | ایماندار

دَ هر متکبر نه چه دَ حساب په ورځ باور نهٔ لری او دَ فرعون دَ قوم یو مؤمن

مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيمَانَهُ أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَن يَقُولَ

له قوم دَ فرعون نه | چه پټولوئے | خپل ایمان | آیا تاسو وژنئ | دا سے سړے | چه دا وائی

سړی ووئیل چه خپل ایمان به ئے پټ ساتلو آیا تاسو یو دا سے سړے وژنئ چه هغه وائی

رَبِّيَ اللَّهُ وَقَدْ جَاءَكُم بِالْبَيِّنَاتِ مِن رَّبِّكُمْ ۖ وَإِن يَكُ

چه زما رب | الله دے | او بیشکه دهٔ راوړی دی تاسوته | (روښانه) دلیلونه | ستاسو دَ رب له طرف نه | او کهٔ چرے دے دی

چه زما رب الله دے او تاسو دَ پاره ئے دَ خپل رب له طرف نه څرګند دلیلونه راوړی دی او کهٔ چرے دے

كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهُ ۖ وَإِن يَكُ صَادِقًا يُصِبْكُم بَعْضُ

دروغژن | نو هم په دهٔ دے | (وبال) دَ دهٔ دَ دروغو | او کهٔ چرے وی دے | رښتینے | نو وُبه رسیږی تاسوته | (څهٔ نا) څهٔ

دروغژن وی نو دَ دهٔ دَ دروغو (وبال) به هم په دهٔ پریوځی او کهٔ رښتینے وی نو دَ هغهٔ څنے پیشګوئی به در باندِ

الَّذِي يَعِدُكُمْ ۖ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ

هغه (عذاب) دَ کوم چه | دے وعدهٔ کوی تاسو سره | بیشکه الله | لاره نهٔ ښائی | هغه چاته چه | هغه دَ حد نه تیریدونکے

در پریوزی ، الله تعالیٰ هغه څوک په سمه لاره نهٔ بوځی چه دَ حد نه تیریدونکے

كَذَّابٌ ﴿٢٨﴾ يَا قَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ظَاهِرِينَ فِي الْأَرْضِ

دروغژن وی | اے زما قومه! | ستاسو | بادشاهی ده | نن ورځ | غالب یئ | په زمکه کښے

او غټ دروغژن وی ۔ اے زما ورونړو! نن خو بادشاهی ستاسو ده چه په دے ملک کښے حاکمان یئ

فَمَن يَنصُرُنَا مِن بَأْسِ اللَّهِ إِن جَاءَنَا ۚ قَالَ فِرْعَوْنُ

پس څوک به | مدد وکړی زمونږ | له عذاب | دَ الله نه | کهٔ چرے هغه راشی مونږ ته | ووئیل | فرعون

نو کهٔ دَ الله تعالیٰ عذاب راشی نو څوک به مونږ دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه بچ کړی؟ فرعون ووئیل

مَا أُرِيكُمْ إِلَّا مَا أَرَىٰ وَمَا أَهْدِيكُمْ إِلَّا سَبِيلَ

زهٔ نهٔ ښایم تاسوته | مګر | هغه څهٔ | چه زهٔ خپله ګورم | او زهٔ لاره نهٔ ښایم تاسوته | مګر | لاره

زهٔ خو بس تاسو ته هغه رائے درکوم کومه چه ماته (په رښتیا سمه) ښکاری او بله لاره نهٔ خو فقط دَ مصلحت نه ډکه

الرَّشَادِ ﴿٢٩﴾ وَقَالَ الَّذِي آمَنَ يَا قَوْمِ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُم

دَ راستئ | او ووئیل | هغه کس چه | ایمان ئے راوړے وو | اے زما قومه! | بیشکه زهٔ ویریږم | په تاسو

لاره درنه ښایم ۔ او کوم سړی چه ایمان راوړے وو هغهٔ ووئیل چه اے ورونړو! ما سره اندیښنه ده چه دَ نورو

مِثْلَ يَوْمِ الْاَحْزَابِ ۝٣٠ مِثْلَ دَاْبِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ

دَمثل | دَ ورځو | دَجماعتونو پخوانو | په شان | دَ صورتِ دَحال | دَ قوم | دَ نوحؑ | او دَ عاد | او دَ ثمود

امتونو غوندې بده ورځ درباندې رانهٔ شي. چه دَ قوم دَ نوحؑ او دَ عاد او دَ ثمود او دَ هغوئ نه دَ

وَالَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ۭ وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعِبَادِ ۝٣١ وَيٰقَوْمِ

او دَ هغو خلقو چه | وروستو له دوی نه وُو | او الله نهٔ غواړي | ظلم كول | (په خپلو) بندګانو باندې | او اے زما قومه!

وروستنو خلقو غوندې چل درسره وُشي. او الله په خپلو بندګانو باندې دَ ذرے هومره ظلم كول نهٔ غواړي. او اے ورونړو!

اِنِّىْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ التَّنَادِ ۝٣٢ يَوْمَ تُوَلُّوْنَ مُدْبِرِيْنَ ۚ

بيشكه زهٔ | ويرېږم | په تاسو باندې | دَ ورځے دَ چغونه | په كومه ورځ چه به | تاسو تښتئ | شا اړخ ته

ماسره دَ چغو دَ ورځے اندېښنه ده ، په هغه ورځ چه تاسو به شا اړخ نه تښتئ.

مَا لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ

نهٔ به وي تاسو دَ پاره | دَ الله نه | څوک بچ كوونكے | او څوک چه | بے لارے كړي | الله | پس نشته دهٔ دَ پاره

هيڅوک به مو دَ الله دَ نيولو نه بچ كوونكے نهٔ وي ، او څوک چه الله بے لارے كړي ، نو هغه هيڅوک

مِنْ هَادٍ ۝٣٣ وَلَقَدْ جَاۗءَكُمْ يُوْسُفُ مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا زِلْتُمْ

څوک لارے ښوودونكے | او بيشكه راغلے وو تاسو ته | يوسف (هم) | له دے نه وړاندې | په واضحه نخښو سره | پس هميشه وئ تاسو

په لاره كولے نهٔ شي. او له دے نه وړاندې تاسو ته يوسفؑ ښكاره دليلونه راوړي وو ، نو تاسو دَ هغهٔ دَ

فِيْ شَكٍّ مِّمَّا جَاۗءَكُمْ بِهٖ ۭ حَتّٰٓى اِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ

په شک كښے | له هغه څهٔ نه | چه دهٔ راوړے وو تاسو ته | تردے چه | هر كله دے مړ شو | (نو) تاسو ووئيل

راوړو خبرو په حقله هم برابر شكمن يئ ، تردے چه هغه مړ شو نو تاسو ووئيل

لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِهٖ رَسُوْلًا ۭ كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ هُوَ

هيڅ كله به رانهٔ ليږي | الله | پس له دهٔ نه | پيغمبر | دغه شان | ګمراه كوي | الله | هغه څوک چه وي

چه اوس به الله تعالیٰ بل پيغمبر نهٔ رالېږي ، دغه شان الله تعالیٰ حد نه تيرېدونكي شک كوونكي

مُسْرِفٌ مُّرْتَابُۨ ۝٣٤ۚۖ الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ بِغَيْرِ

له حده تيرېدونكے | شک كوونكے | كوم خلق چه | جګړے كوي | دَ الله په آيتونو كښے | بغير

خلق دَ هدايت نه محروم ساتي. كوم خلق چه دَ الله تعالیٰ په آيتونو كښے بغير دَ څهٔ دليل نه چه هغوئ

سُلْطٰنٍ اَتٰىهُمْ ۭ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ وَعِنْدَ الَّذِيْنَ

دَ څهٔ دليل نه | چه راغلے وي دوی ته | ډيره | ناخوښه ده | په نزد دَ الله | او په نزد | دَ هغه خلقو چه

ته راغلے وي جګړے كوي (دا) دَ الله تعالیٰ او دَ مؤمنانو په نزد ډير ناخوښه

اٰمَنُوْا ۭ كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰي كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ ۝٣٥

ايمان ئے راوړے دے | دغه شان | مهر لګوي | الله | په هر زړهٔ | دَ كبرژن | سركشه

خبره ده دغه شان الله تعالیٰ دَ هر مغروره جابره بنده په زړهٔ باندې مهر لګوي

وَقَالَ فِرْعَوْنُ يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ اَبْلُغُ

اووویئیل | فرعون | اے هامانه! | جوړ کړه | ما دَ پاره | یو محل | دَ پاره دَ دے چه زهٔ | وُرسم

او فرعون ووئیل چه اے هامانه! ماله یوه اوچته ماړئی جوړه کړه ، شاید زهٔ (په دے) بانډِ په ختوسره هغه

الْاَسْبَابَ ۝۳۶ اَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ فَاَطَّلِعَ اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى وَاِنِّيْ

لارو ته | چه لارے دی | دَ آسمانونو | چه وُگورم | طرف دَ معبود دَ موسیٰ ته | او بیشکه زهٔ

لارو ته وُرسم (چه) دَ آسمان لارو سره (ملاویږی) ، بیا دَ موسیٰ خدائے له وُویینم اوزهٔ خو دا

لَاَظُنُّهٗ كَاذِبًا ۭ وَكَذٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ وَصُدَّ

گمان کوم په دهٔ | دَ دروغژن | او دغه شان | ښائسته معلوم شو | فرعون ته | بَدُ | عمل دَ دهٔ | او دے منع کړے شو

موسیٰ دروغژن گڼړم ، او دغه شان فرعون ته خپل بد کارونه ښائسته ښکاریدل او دَ سمے لارے

عَنِ السَّبِيْلِ ۭ وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ اِلَّا فِيْ تَبَابٍ ۝۳۷ وَقَالَ الَّذِيْٓ

له (سمے) لارے نه | او نهٔ وو | تدبیر | دَ فرعون | مگر | په تباهئ کښے | او ووئیل | هغه سړی چه

نه لارے محرومه وو ، او دَ فرعون هر یو تدبیر برباد لاړو ۔ اوکوم سړی چه ایمان راوړے وو

اٰمَنَ يٰقَوْمِ اتَّبِعُوْنِ اَهْدِكُمْ سَبِيْلَ الرَّشَادِ ۝۳۸ يٰقَوْمِ

ایمان ئے راوړے وو | اے زما قومه! | تاسو پیروی وکړئ زما | زهٔ به وُښایم تاسو ته | لاره | دَ راستئ | اے زما قومه!

هغهٔ ووئیل چه اے زما قومه! تاسو زما په لاره روان شئ ، زهٔ به تاسو ته دَ نیکئ لاره وُښایم ۔ اے زما قومه!

اِنَّمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا مَتَاعٌ ۡ وَّاِنَّ الْاٰخِرَةَ هِيَ دَارُ الْقَرَارِ ۝۳۹

بیشکه | دا | ژوند | دَ دُنیا | (عارضی) فائده ده | او یقیناً | آخرت | هم دا دَ آرام کور دے

دا دَ دُنیا ژوند خو محض دَ یو څو ورځو مزے چرچے دی او دَ استوگنے اصل ځائے خو آخرت دے

مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا ۚ وَمَنْ عَمِلَ

چاچه | عمل وکړو | بَدُ | نو بدله به نه شی ورکولے ډُٔنه | مگر | هم دَ هغے برابر | او چا چه | عمل وکړو

څوک چه گناه کوی نو هغهٔ ته به خپله پوره بدله ورکیدے شی ، او چا چه نیک عمل

صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓىِٕكَ يَدْخُلُوْنَ

نیک | هغه سړے وی | یا ښځه | او هغه | مؤمن وی | نو هم داخلق دی | چه داخلیږی به

وکړو سړے وی اوکهٔ ښځه او هغه صاحبِ ایمان (هم) وی نو جنت ته به

الْجَنَّةَ يُرْزَقُوْنَ فِيْهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝۴۰ وَيٰقَوْمِ مَا لِيْٓ

جنّت ته | رزق به ورکولے شی دوی ته | په دے کښے | بے حسابه | او اے زما قومه! | څهٔ خبره ده

ورننوځئ او هلته به هغوئ ته بے حسابه رزق ورکولے شی ۔ او (وئے وئیل) اے زما قومه! دا څهٔ چل

اَدْعُوْكُمْ اِلَى النَّجٰوةِ وَتَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَى النَّارِ ۝۴۱ ۭ

چه زهٔ راغواړم تاسو | دَ نجات طرف ته | او تاسو راغواړئ ما | دَ دوزخ طرف ته

دے چه زهٔ خو تاسو دَ نجات طرف ته راغواړم ، او تاسو م دوزخ طرف ته رابلئ۔

تَدْعُونَنِيْ لِاَكْفُرَ بِاللّٰهِ وَاُشْرِكَ بِهٖ مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ ز

تاسو خوما بلئ | چه زهٔ انکار وکړم | دَ الله | او شريک ورسره کړم | دَ ده سره | هغه څهٔ | دَ کوم چه نشته ما ته | څهٔ علم

تاسو ما ته دَ دې خبرې بلنه راکوئ چه دَ الله نه انکار وکړم او داسې څيزونه ورسره شريک کړم چه ما سره دَ هغې په حقله هيڅ دليل نشته

وَّاَنَا اَدْعُوْكُمْ اِلَى الْعَزِيْزِ الْغَفَّارِ ﴿٤٢﴾ لَا جَرَمَ اَنَّمَا

او زهٔ | بلم تاسو | طرف دَ ډير زبردست | بخښونکي ته | هيڅ شک نشته | چه بيشکه هغه څيز

او زهٔ تاسو دَ غالب (او) بخښونکي خدائے طرف ته رابلم - دا ملې خبره ده چه تاسو ما کوم

تَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَيْهِ لَيْسَ لَهٗ دَعْوَةٌ فِي الدُّنْيَا وَلَا فِي الْاٰخِرَةِ

چه تاسو ما بلئ طرف دَ هغې ته | نهٔ خو هغه | بللې شي | په دنيا کښې | او نهٔ | په آخرت کښې

څيز ته رابلئ هغه نهٔ په دُنيا کښې او نهٔ په آخرت کښې دَ بللې لائق دے

وَاَنَّ مَرَدَّنَآ اِلَى اللّٰهِ وَاَنَّ الْمُسْرِفِيْنَ هُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ ﴿٤٣﴾

او دا چه | مونږ له واپس تلل دي | دَ الله طرف ته | او دا چه | له حد نه تيريدونکي | هم دوی دی | دوزخيان -

او مونږ ټول به دَ الله طرف ته پسته ورځواوخوک چه دَحد نه ورانږ تيريږي هغه ټول دوزخيان دی

فَسَتَذْكُرُوْنَ مَآ اَقُوْلُ لَكُمْ ط وَاُفَوِّضُ اَمْرِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ط

پس زر به تاسو ياد کړئ | هغه څهٔ | چه زهٔ وايم | تاسو ته | او زهٔ سپارم | خپله معامله | الله ته

پس هغه وخت ليرے نهٔ دے چه زما خبرے به راياد وئ ، او زهٔ خپله معامله الله تعالیٰ ته سپارم

اِنَّ اللّٰهَ بَصِيْرٌ م بِالْعِبَادِ ﴿٤٤﴾ فَوَقٰىهُ اللّٰهُ سَيِّاٰتِ مَا مَكَرُوْا

بيشکه الله | کوري | بندګانو ته | پس بچ کړو دے | الله | له شرنه | دَ هغه تدبير چه دوی کړے وو

بيشکه الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته وينې کوري، نو الله تعالیٰ هغه (مؤمن) دَ دوئ دَ مکرونو فريبونو نه بچ وساتلو

وَحَاقَ بِاٰلِ فِرْعَوْنَ سُوْٓءُ الْعَذَابِ ج ﴿٤٥﴾ اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ

او راګير کړل | فرعونيانو لره | خراب | عذاب | هغه اور دے | چه پيش کولے شي دوی

او دَ فرعونيانو نه خراب عذاب راتاؤ شو - هغوئ صبا او مابنام

عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّا ج وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ قف اَدْخِلُوْٓا

دَ هغې په مخکښې | صبا | او مابنام | او په کومه ورځ چه به | قائم شي | قيامت | (حکم به وشي) داخل کړئ

دوزخ ته وروړاندې کولے شي او په کومه ورځ چه قيامت قائم شي (نو حکم به وشي چه) دَ فرعون

اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ ﴿٤٦﴾ وَاِذْ يَتَحَآجُّوْنَ فِي النَّارِ

فرعونيان | په ډير سخت | عذاب کښې | او هر کله چه | دوی به جګړه کوی | په اور کښې

ملګري سخت عذاب ته ورننباسئ او څهٔ وخت چه دوئ په دوزخ کښې دَ يو بل سره جګړے کوی

فَيَقُوْلُ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا

پس وائي به | کمزوری خلق | هغه خلقو ته | چه کبر به ئے کولو | چه بيشکه مونږ وو | ستاسو | تابع

نو کمزوري کسان به دَ مرتبو خاوندانو ته وائي چه مونږ خو ستاسو پيروی کوله

فَهَلْ اَنْتُمْ مُّغْنُوْنَ عَنَّا نَصِيْبًا مِّنَ النَّارِ ﴿٤٧﴾ قَالَ الَّذِيْنَ

پس آیا | تاسو یه | لرې کوونکي | له مونږه | څه حصه | د اور | | ووایي | هغه خلق چه

نو آیا اوس مونږ نه څه لږ ډیر عذاب کمولې شئ؟ غټان خلق به ورته

اسْتَكْبَرُوْٓا اِنَّا كُلٌّ فِيْهَآ ۙ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ الْعِبَادِ ﴿٤٨﴾

تکبر به ئې کولو | چه بیشکه مونږ | ټول | په دې کښې یو | بیشکه الله | فیصله کړې ده | د بندګانو ترمینځه

ووائي چه اوس خو په کښې ټول د سیلې پراته یو، الله تعالیٰ د خپلو بندګانو ترمینځه قطعي فیصله کړې ده

وَقَالَ الَّذِيْنَ فِى النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ ادْعُوْا رَبَّكُمْ

او وُبه وائي | هغه خلق چه | په اور کښې (وی) | نګهبانانو | د دوزخ ته | چه دُعا وکړئ | خپل رب ته

او څوک چه په دوزخ کښې پراته وی هغوئ به د دوزخ څوکیدارانو فرښتوته ووائي چه تاسو خپل رب ته دُعا وکړئ

يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ ﴿٤٩﴾ قَالُوْٓا اَوَلَمْ تَكُ تَاْتِيْكُمْ

چه کم کړی | له مونږه | یوه ورځ | څه عذاب | | وُبه وائي (نګهبانان) | آیا نه راتلل تاسو ته

چه زمونږ ورځ نیمه څوڅه عذاب کم کړی. فرښتې به ورته جواب ورکړی آیا تاسو ته پیغمبرانو څرګند

رُسُلُكُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ۭ قَالُوْا بَلٰى ۭ قَالُوْا فَادْعُوْا ۚ وَمَا دُعٰٓؤُا

پیغمبران ستاسو | د واضحو نخښو سره | دوی به وُوائي | ولې نه | دوی به وُوائي | پس دُعا وکړئ | او نه ده دُعا

نخښې نه وې راوړې؟ هغوئ به اقرار وکړی چه هو! راوړې خو ئې. (فرښتې) به ووائي بیا هم تاسو دُعا وکړئ او (یاد ساتئ

الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِىْ ضَلٰلٍ ﴿٥٠﴾ اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ

د کافرانو | مګر | په تباهۍ کښې | بیشکه مونږ | خامخا مدد ورکوو | خپلو پیغمبرانو ته | او هغه کسانو ته

چه) د کافرانو دعا خو همیشه بې اثره پاتې وی. مونږ د خپلو پیغمبرانو او د ایماندارو کسانو

اٰمَنُوْا فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْاَشْهَادُ ﴿٥١﴾ ۙ يَوْمَ

چه ایمان ئې راوړو | په ژوند د دُنیا کښې | او په کومه ورځ چه به | ودریږی | ګواهان | په کومه ورځ چه به

امداد کوو، هم په دنیا کښې او هم په هغه ورځ چه خلق به ګواهئ له راپاڅی، په کومه ورځ

لَا يَنْفَعُ الظّٰلِمِيْنَ مَعْذِرَتُهُمْ وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ

نفع نه ورکوی | ظالمانو ته | عُذر د دوئ | او دوی د پاره | لعنت دے | او دوئ د پاره

چه ظالمانو له به عذر معذرت هیڅ فائده نه ورکوی او په لعنت به ګرفتار وی، او هغوئ

سُوْٓءُ الدَّارِ ﴿٥٢﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْهُدٰى وَاَوْرَثْنَا

خراب کور دے | او بیشکه مونږ ورکړو | موسیٰؑ ته | هدایت | او | وارثان کړل مونږ

د پاره به (د دوزخ) ډیر خراب کور وی. او بیشکه مونږ موسیٰؑ ته (کتاب د) هدایت ورکړو او بنی اسرائیل مو د

بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْكِتٰبَ ﴿٥٣﴾ ۙ هُدًى وَّذِكْرٰى لِاُولِى الْاَلْبَابِ ﴿٥٤﴾

بنی اسرائیل | د کتاب | چه هدایت | او نصیحت وو | عقل مندو د پاره

دې کتاب وارثان جوړ کړل، چه عقلمندو د پاره هدایت او نصیحت وو.

فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّاسْتَغْفِرْ لِذَنْۢبِكَ وَسَبِّحْ

پس صبر کوه | بیشکه | وعده | دَ الله | رښتینے ده | او معافی غواړه | دَ خپلے ګناه | او پاکی بیانوه

نو ته صبر کوه . بیشکه دَ الله تعالیٰ وعده رښتینے ده او دَ خپلے کوتاهئ (دَ الله نه) معافی وُغواړه ، او صبا

بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ ﴿۵۵﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ

ستائنے دَ رب خپل | ماښام | او صبا | بیشکه | کوم خلق چه | جګړے کوی

او ماښام دَ خپل رب پاکی بیانوه او دَ هغهٔ تعریفونه کوه . څوک چه بغیر دَ څهٔ سند نه دَ الله تعالیٰ دَ ایتونو

فِيْ اٰيٰتِ اللّٰهِ بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ اَتٰهُمْ ۙ إِنْ فِيْ صُدُوْرِهِمْ

دَ الله په ایتونو کښے | بغیر | دَ (څهٔ) دلیل نه | چه راغلے وی دوی ته | نشته | دَ دوئ په زړونو کښے

په حقله جګړے کوی کوم چه دوئ ته (دَ الله دَ طرف نه) رارسیدلی وی ، دَ هغوئ په زړونو کښے نور څهٔ نشته خو نشه

إِلَّا كِبْرٌ مَّا هُمْ بِبَالِغِيْهِ ۚ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ۖ إِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ

مګر غرور | نهٔ دی دوئ | رسیدونکی هغے ته | پس پناه غواړه | دَ الله | بیشکه هم دے دے | اَورېدونکے

دَ لوئ . برنده ده خو هغوئ ګڼلو بئ ته (په رښتیا) هیچرے رسیدلے نهٔ شی نو ته دَ الله پناه غواړه ، هغه هر څهٔ اَوری هر څهٔ وینی

الْبَصِيْرُ ﴿۵۶﴾ لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ

لیدونکے | یقینًا پیدا وښت | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | ډیر لوئے دے | له پیدا وښت دَ خلقونه

ګوری - دا ښکاره خبره ده چه دَ آسمانونو او دَ زمکے پیدا وښت دَ بنیادمو دَ پیدا کولو نه زیات غټ کار دے

وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۷﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمٰى

او لیکن | اکثر خلق | نهٔ | پوهیږی | او نهٔ دی برابر | ړوند

خو اکثر خلق په دے نهٔ پوهیږی ، او ړوند او بینا یو برابر کیدے

وَالْبَصِيْرُ ۙ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَلَا الْمُسِيْٓءُ ۚ

او بینا | او کومو خلقو چه | ایمان راوړو | او عملونه وکړو | نیک | (هغوئ) او بدکار (برابر) نهٔ دی

نهٔ شی او نه صاحبِ ایمان نیکوکار او بدکار (برابر کیدے شی)

قَلِيْلًا مَّا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۵۸﴾ إِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيْهَا

ډیر لږ | تاسو نصیحت قبلوئ | بیشکه | قیامت | راتلونکے دے | هیڅ شک نشته | په دے کښے

خو تاسو خلق ډیر کم نصیحت قبلوئ . قیامت خو به خامخا راځی په دے کښے هیڅ شک نشته

وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۹﴾ وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُوْنِيْٓ

او لیکن | اکثر | خلق | ایمان نهٔ راوړی | او وُفرمائیل | ستاسو رب | دُعا کوئ

خو اکثر خلق دا خبره نه منی - او ستاسو رب فرمائیلی دی چه ماته دُعا کوئ

أَسْتَجِبْ لَكُمْ ۚ إِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ

چه قبوله کړم | ستاسو (دُعا) | بیشکه | کوم خلق چه | لوئی کوی | زما له عبادت نه

زهٔ به ستاسو دُعا قبلوم ، بیشکه کوم خلق چه زما دَ عبادت نه تکبر کوی

سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دٰخِرِيْنَ ﴿٦٠﴾ اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ

ډیرزر به داخل شي | په دوزخ کښې | ذلیله | الله | هغه دے چه | پیدا ئے کړله | تاسو دَ پاره

هغوئ به د ډیر ذلّت سره په دوزخ کښې داخلیږی ۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے چه تاسو له ئے شپه

الَّيْلَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ

شپه | چه تاسو آرام وکړئ | په دے کښې | او ورځ | روښانه | بیشکه | الله | لوئے فضل والا دے

جوړه کړه چه آرام پکښې کوئ ، او ورځ ئے درله روښانه کړے ده ، بیشکه چه الله تعالیٰ په خلقو ډیرے

عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿٦١﴾ ذٰلِكُمُ

په خلقو باندې | او لیکن | اکثر | خلق | شکر نهٔ کوی | هم دا

مهربانئ کړی دی خو اکثر خلق شکر نهٔ کوی ۔ هم دا الله دے

اللّٰهُ رَبُّكُمْ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ ۘ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۫ فَاَنّٰى

الله | ستاسو ربّ دے | پیدا کوونکے | دَ هر څیز | نشته بل معبود | سیوا دَ دهٔ نه | نو کوم خوا

چه ستاسو رب دے دَ هر څیز پیدا کوونکے دے ، دَ هغهٔ سیوا بل څوک دَ عبادت لائق نشته نو دا تاسو

تُؤْفَكُوْنَ ﴿٦٢﴾ كَذٰلِكَ يُؤْفَكُ الَّذِيْنَ كَانُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

تاسو اړولی روان یئ ؟ | دغه شان | اړولی روان وو | هغه خلق چه | هغوئ به دَ الله دَ آیتونو نه

کوم خوا اړولی روان یئ ؟ دغه شان هغه خلق هم اړولی روان وو چه دَ الله تعالیٰ دَ آیتونو نه

يَجْحَدُوْنَ ﴿٦٣﴾ اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ قَرَارًا

انکار کولو | هم الله دے | چا چه | جوړه کړه | تاسو دَ پاره | زمکه | آرام ځا

به ئے انکار کولو ۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے چه زمکه ئے تاسو له دَ استوګنے ځائے جوړ کړے دے

وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً وَّصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ وَرَزَقَكُمْ

او آسمان | چَت | او صورتونه ئے جوړ کړل ستاسو | نو ښهٔ ئے جوړ کړل | صورتونه ستاسو | او روزی ئے درکړه تاسو ته

او آسمان ئے در باندې چت ساز کړے دے او ستاسو صورتونه ئے جوړ کړی دی نو ښهٔ ښهٔ صورتونه ئے جوړ کړی دی او ښهٔ ښهٔ پاکیزه

مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ۚۖ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ

له پاکیزه څیزونو نه | هم دا الله | ستاسو رب دے | پس ډیر برکت والا دے | الله | چه رب دے

خوراکونه ئے درله روزی کړی دی ، هم دا الله تعالیٰ ستاسو رب دے نو الله تعالیٰ ډیر دَ برکتونو خاوند دے چه دَ ټول مخلوق

الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦٤﴾ هُوَ الْحَيُّ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ

دَ ټولو جهانونو | هم دے دے | همیشه ژوندے | نشته څوک معبود | سیوا دَ دهٔ نه | پس عبادت کوئ تاسو دَ دهٔ | خالص کوونکی

پالونکے دے ۔ دے همیشه ژوندے دے دَ دهٔ نه سیوا بل څوک معبود نشته ، نو تاسو په اخلاص سره دَ دهٔ

لَهُ الدِّيْنَ ؕ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦٥﴾ قُلْ

دهٔ دَ پاره | عبادت | ټول تعریفونه | الله دَ پاره دی | چه رب دے | دَ ټولو جهانونو | ووایه

بلنه کوئ ټول تعریفونه الله تعالیٰ دَ پاره دی چه دَ ټولو مخلوقاتو رب دے ۔ (اے پیغمبره!) ته ووایه

رکوع ٦ — وقف لازم

إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ

بېشکه زه | منع کړے شوے یم | (له دے خبرے نه) چه زه عبادت وکړم د هغو چه | عبادت ئے کوئ تاسو | سیوا | د الله نه

چه زه خو دِ دے نه منع کړے شوے یم چه د الله تعالیٰ نه سیوا ستاسو د معبودانو عبادت دِ وکړم

لَمَّا جَاءَنِيَ الْبَيِّنَاتُ مِنْ رَبِّي وَأُمِرْتُ أَنْ أُسْلِمَ

هر کله چه | راغلے ماته | (ښکاره) نخښے | زما د رب له طرف نه | او ماته حکم شوے دے | چه زه دِ تابعدار شم

سره د دے خبرے چه ماته د خپل رب له طرف نه ښکاره نخښے رارسیدلے دی او ماته خو بس دا حکم دے چه د رب العالمین

لِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٦٦﴾ هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ

د پروردګار د عالمونو | هم دے دے | چا چه | پیدا کړئ تاسو | له خاورے نه | بیا

وړاندِ دِ سر ټیټوم - خدائے هغه ذات دے چه تاسوئے د خاورے نه راپیدا کړئ بیا ئے

مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ

له نطفے نه | بیا | د وینے له ټوټے نه | بیا | دے تاسو راوباسی | ماشومان | بیا

د څاڅکی اُوبو نه بیا ئے د وینے له ټوټے نه بیا ئے ماشوم (د مور د خیټے نه) راوویستلئ بیا

لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا ۚ وَمِنْكُمْ مَنْ

چه تاسو ورسیږئ | خپل طاقت ته | بیا | چه شئ تاسو | بوډا ګان | او ځینے له تاسو نه | هغه څوک دے

تر دے چه د کے ځوانئ ته ورسیدئ بیا تر دے چه بوډا ګان شئ او څوک درکښے وړاندِ

يُتَوَفَّىٰ مِنْ قَبْلُ ۖ وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُسَمًّى وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾

چه مړ شی | له دے نه وړاندِ | او چه تاسو ورسیږئ | مقرر مودے ته | او د پاره د دے چه تاسو | عقل نه کار واخلئ

مړ شی او د پاره د دے چه تاسو ټول خپلے مقررے نیټے ته ورسیږئ او چه د پوهے نه کار واخلئ

هُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ ۖ فَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا

دے | هغه ذات دے چه | ژوندی کوی | او مړه کوی | پس هر کله چه | دے فیصله کوی | د څه کار | نو صرف هم دا

خدائے هغه ذات دے چه ژوندی کول او وژل کوی ، نو څه وخت چه هغه یو کار ترسره کول غواړی نو ورته

يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ﴿٦٨﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُجَادِلُونَ

وائی | هغه ته | چه شه | نو هغه شی | آیا تا نه دی کتلی | هغه خلقو نه | چه جګړے کوی

وائی چه او شه نو په هغه درنګ وشی - آیا ته هغے خلقو ته نه ګورے چه د الله تعالیٰ د ایتونو په

فِي آيَاتِ اللَّهِ أَنَّىٰ يُصْرَفُونَ ﴿٦٩﴾ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِالْكِتَابِ وَبِمَا

د الله په ایتونو کښے | کوم خوا | دوی اړولی روان دی؟ | هغه خلق چه | دروغ ئے وګڼړلو | کتاب | او هغه څه

حقله جګړے کوی دا دوئ لا کوم خوا نه روان دی؟ هغه څوک چه دا کتاب ئے دروغ وګڼړلو او کوم (کتابونه او

أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا ۖ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٧٠﴾ إِذِ الْأَغْلَالُ

چه رالیږلی دی مونږ | په هغے سره | خپل پیغمبران | نو ژر زر به | دوی پوهه شی | هر کله چه | طوقونه (به وی)

حکمونه) چه مونږ د نورو پیغمبرانو په لاس رالیږلی ؤ نو ډیر زر به په پته پوهه شی چه په څټو نو کښے ورته تېزندۍ

ع ٨/٧ ١٢

معانقة ١٣

فِىٓ أَعْنَاقِهِمْ وَالسَّلَاسِلُ ۖ يُسْحَبُونَ ﴿٧١﴾ فِى الْحَمِيمِ ۙ ثُمَّ فِى النَّارِ

دَ دوئ په څټونو کښې | او زنځیرونه | دوی به راښکلی شی | په ګرمو اُوبو کښې | بیا به | په اور کښې

او زنځیرونه واچولے شی ، راښکلی به شی په یشیدلو اُوبو کښې ، بیا به په اور کښې

يُسْجَرُونَ ﴿٧٢﴾ ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ تُشْرِكُونَ ﴿٧٣﴾

دوی سوزولے شی | بیا به ووئیلے شی | دوئ ته | چرته دی | هغه څهٔ | چه تاسو به شریکول

درشوړه کړے شی ۔ بیا به ترے نه تپوس وُشی چه (نن) ستاسو هغه شریکان څهٔ شول ۔

مِن دُونِ اللَّهِ ۖ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا بَل لَّمْ نَكُن نَّدْعُو

سیوا دَ الله نه | دوئ به وائی | ورک شول | له مونږه نه | بلکه | مونږ خو عبادت نه وو کړے

چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا به موجود ول هغوئ به وائی چه ټول رانه غائب شول بلکه مونږ خو به له دے نه وړاندِ

مِن قَبْلُ شَيْئًا ۚ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ الْكَافِرِينَ ﴿٧٤﴾ ذَٰلِكُم

له دے نه وړاندِ | دَ څهٔ څیز | دغه شان | ګمراه کوی | الله | کافران | دا (عذاب) په تاسو

دَ بل هیچا عبادت نهٔ کولو ۔ دغه شان الله تعالیٰ کافران په ګمراهئ کښې نښتی ساتی ۔ دا اوس دَ هغې

بِمَا كُنتُمْ تَفْرَحُونَ فِى الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنتُمْ

ځکه دے | چه تاسو به | خوشحالیدئ | په زمکه کښې | په ناحقه | او په وجه دَ هغه څهٔ | چه تاسو به

خبرے بدله دهٔ چه تاسو به په دُنیا کښې بر ناحقه خوشحالئ کولے او دا دَ هغې بدله دهٔ چه تاسو

تَمْرَحُونَ ﴿٧٥﴾ ادْخُلُوٓا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا ۖ فَبِئْسَ

غرور کولو | داخل شئ تاسو | دروازو | دَ دوزخ ته | همیشه به یئ | په هغې کښې | پس بد دے

به ځان ته غاوره وئ ۔ اُوس دَ جهنّم په دروازو ورننوځئ تل به پکښې پراتهٔ یئ ، دَ غاوره خلقو

مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ ﴿٧٦﴾ فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ ۚ فَإِمَّا

ځائے | دَ کبرجنو | پس صبر کوه | بیشکه | وعده | دَ الله | رښتینے دهٔ | پس که چرے

تیکاڼه ډیره خرابه دهٔ ۔ نو (اے نبیؐ!) تهٔ صبر کوه بیشکه چه دَ خدائے وعده رښتینے دهٔ ، نو مونږ

نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِى نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ

مونږ وُښایو تا ته | څهٔ حصه دَ هغه (عذاب) | چه | مونږ ئے وعده کوو دَ دوئ سره | یا | مونږ روح قبض کړو ستا

چه دوئ سره دَ کومے سزا وعده کوو که دَ هغې څهٔ لږه حصه تا ته وُښایو یا که تا (دَ هغې دَ ښکارېدو نه وړومبے)

فَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ﴿٧٧﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ

پس زمونږ طرف ته به | دوی واپس راګرځولے شی | او لیږلی وو مونږ | پیغمبران | له دے نه وړاندِ

وفات کړو نو (په هر صورت) ټول به مونږ ته پستنه راځئ ۔ او مونږ له تا نه وړاندِ ډیر پیغمبران رالیږلی دی

مِنْهُم مَّن قَصَصْنَا عَلَيْكَ وَمِنْهُم مَّن لَّمْ نَقْصُصْ

ځنے له دوی نه | هغه څوک دی | (دَ کومو حال چه) دا وُرولو مونږ | تا ته | او ځنے هغه دی چه | نهٔ دے آوُرولے

چه دَ چا قصے مو تا ته بیان کړی دی ، او دَ چا قیصئ مو در ته بیان

عَلَيْكَ ؕ وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ

تا نه | او نه وو (حق) | دَ هيڅ پيغمبر | چه هغه راوړي | څه معجزه | مګر | دَ الله په حکم

کړی نه دی۔ او هر پيغمبر چه يوه نخښه ښودلې ده نو بس دَخدائے په اذن ئے ښودلې ده

فَاِذَا جَآءَ اَمْرُ اللّٰهِ قُضِيَ بِالْحَقِّ وَخَسِرَ هُنَالِكَ

بيا هر کله چه | راغے | حکم | دَ الله | نو فيصله وکړے شوه | په انصاف سره | او تاوانيان شول | دغه وخت

نو څه وخت چه دَخدائے حکم راشي نو سمه پوره فيصله به وشي او دَ باطل ملګری به تاوانيان

الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۷۸﴾ ع اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَنْعَامَ لِتَرْكَبُوْا

اهل باطل | الله | هغه ذات دے چه | پيدا ئے کړل | تاسو دَ پاره | څاروی | چه تاسو سواره شئ

ياتے شي۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے چه تاسو دَ پاره ئے (قسم قسم) څاروی پيدا کړی دی چه په څه با سل

مِنْهَا وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿۷۹﴾ وَلَكُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ وَلِتَبْلُغُوْا

په ځنو دَ هغوئ | او ځنے دَ هغوئ نه | تاسو خورئ | او تاسو دَ پاره | په دے کښے | (ډيرے) فائدے دی | او چه ورسيږئ تا

سورلئ کوئ او دَ چا نه خوراکه کوئ۔ او تاسو له پکښے نورے هم ډيرے فائدے پرتے دی او چه دَ خپلو

عَلَيْهَا حَاجَةً فِيْ صُدُوْرِكُمْ وَعَلَيْهَا وَ عَلَى الْفُلْكِ

په هغوئ باندِ | خپل حاجت ته | چه ستاسو په سينو کښے دے | او په څاروو باند | او | په کشتو باند (هم)

زړونو مرادونه پورے ترسره کړئ او په دغه څاروو او په کشتو باندِ تاسو

تُحْمَلُوْنَ ﴿۸۰﴾ ؕ وَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ ۖ ق فَاَيَّ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُنْكِرُوْنَ ﴿۸۱﴾

تاسو سوروِلے شئ | او درته ښائی تاسو ته | خپلے نخښے | پس له کومے يوے | نخښے دَ الله نه | انکار کوئ تاسو ؟

سواره کړے شئ۔ او هغه درته خپل نور نور قدرتونه هم ښائی، نو تاسو به دَ الله دَ کومو کومو قدرتونو نه انکار کوئ ؟

اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ

پس آيا نه دی ګرځيدلی دوی | په زمکه کښے | چه کتلے وے دوی | چه څنګه | وو | انجام

آيا دوئ په ملکونو ګرځيدلی نه دی چه دائے کتلی وے چه دَ دوئ نه دَ پخوانو خلقو

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَانُوْٓا اَكْثَرَ مِنْهُمْ وَاَشَدَّ قُوَّةً

دَ هغه کسانو | چه له دوی نه وړاندِ | هغوئ وو | ډير | له دوی نه | او ډير زيات | په طاقت کښے

انجام څنګه شو ؟ هغوئ خو دَ دوئ نه ډير وو او په طاقت کښے ترے نه زيات وو

وَّاٰثَارًا فِي الْاَرْضِ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا

او په نخښو سره | په زمکه کښے | پس په کار رانغله | دَ دوی | هغه څه چه

او دَ زمکے په مخ ئے ډيرے نخښے پريښودے وے، نو دَ هغوئ دا کټه هيڅ په کار

يَكْسِبُوْنَ ﴿۸۲﴾ فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَرِحُوْا بِمَا

دوی به کول | بيا هر کله چه | راغلل دوی ته | پيغمبران دَ دوی | په معجزو سره | نو خوشحاله به شول | په هغه څه

رانغله۔ غرض دا چه څه وخت پيغمبرانو ورته څرګندے نخښے راوړے، نو هغوئ په خپل

عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ

چه دوی سره به وُو | له پوهې نه | او راګیر کړل | دوی | هغه (عذاب) | چه وُو دوی هغې پورې

علم بانډې ناز شروع کړو - او په کوم خیز پورې چه ئې ملنډې کولې هغه ترې

يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٨٣﴾ فَلَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ

ټوقې کولې | بیا هر کله چه | دوی وُلیدلو | زمونږ عذاب | نو وُئې وئیل | چه مونږ ایمان راوړو | په الله بانډې

نه راتاؤ شو - بیا چه دغه خلقو زمونږ عذاب وُلیدلو نو دائې ووئیل چه مونږ په یوخدائې بانډې ایمان راوړے

وَحْدَهٗ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهٖ مُشْرِكِيْنَ ﴿٨٤﴾

چه یو دے | او انکار وکړو مونږ | په هغه څۀ | چه مونږ به د هغۀ سره | شریکان کول -

دے ، او کوم شریکان چه مونږ جوړول د هغوئ نه لاس په سر یُو

فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ اِيْمَانُهُمْ لَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا ۗ سُنَّتَ اللّٰهِ

پس نفع ورنۀ کړه دوئ ته | د دوئ ایمان | هر کله چه | دوی وُلیدلو | زمونږ عذاب | دا دستور دے د الله

نو دغه ایمان ورته هیڅ فائده ورنۀ کړه څۀ وخت چه زمونږ عذاب ورته ښکاره شو، دا د الله عامه قاعده

الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ فِيْ عِبَادِهٖ ۚ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكٰفِرُوْنَ ﴿٨٥﴾

کوم چه | تیر شوے دے | د ده په بندګانو کښې | او تاوانیان شول | په دغه ځائے کښې | کافران

ده چه د بندګانو په حقله پخوا راسے جاری راغلې ده او دغلته کافران تاوانیان پاتې شول -

سُوْرَةُ حٰمٓ السَّجْدَةِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اَرْبَعٌ وَّخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّسِتُّ رُكُوْعَاتٍ

سورۀ حٰمٓ سجدۀ په مکه کښې نازل شوې او | شروع کوم په نوم د الله چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کونکے دے | په دې کښې ۵۴ آیتونه او ۶ رکوع کانې دی

د الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے -

حٰمٓ ﴿١﴾ تَنْزِيْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿٢﴾ كِتٰبٌ فُصِّلَتْ

حٰمٓ | (دا قرآن) نازل کړے شوے دے | له طرفه د ډیر مهربان | نهایت رحم کونکی نه | دا کتاب دے | واضح کړے شوی دی

حٰمٓ - دا کتاب د رحم کونکی مهربان (خدائے) له طرف نه نازل شوے دے - دا یو داسے کتاب دے چه آیتونه ئې صفا

اٰيٰتُهٗ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿٣﴾ بَشِيْرًا

د دې آیتونه | قرآن دے | په عربئ کښې | د پاره د هغه قوم | چه پوهیږی | زیرې ورکونکے

صفا بیان شوی دی (دا) قرآن په عربئ ژبه کښې دے هغه خلقو د پاره چه پوهه دی - (دا قرآن) زیرے ورکونکے

وَّنَذِيْرًا ۚ فَاَعْرَضَ اَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُوْنَ ﴿٤﴾

او ویروُنکے | پس مخ واړولو | په دوی کښې اکثرو خلقو | پس دوئ | نۀ | آوری

او (له عذابه) ویرۀنکے دے ، خو په دوئ کښې اکثرو کسانو ترې نه مخ وُګرځولو او دوئ هډو آوری نه

وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَيْهِ

او دوی وائی | زمونږ زړونه | په پردو کښې دی | له هغه څۀ نه | چه ته بلې مونږ | د هغې طرف ته

او (کافرانو) وُوئیل چه زمونږ زړونه په غلافونو کښې دی د هغې خبرے نه د کومې طرف ته چه ته سو مونږ بلې

وَفِيْٓ اٰذَانِنَا وَقْرٌ وَّمِنْ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ فَاعْمَلْ

او زموږ په غوږونو کښے | درونوالے دے | او زموږ په مینځ کښے | او ستا په مینځ کښے | یوه پرده ده | پس ته کار کوه

او زموږ په غوږونو کښے درونوالے (یعنی کوڼوالے) دے او زموږ او ستاسو ترمینځه پرده ده نو ته خپل کار کوه

اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ ۞ قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى

بیشکه موږ | خپل کار کوو | ووایه | بیشکه زه خو | یو انسان یم | په شان ستاسو | وحی کولے شی

(او) موږ لګیا یو خپل کار کوو (اے نبیؐ!) ته ورته ووایه چه زه خو هم ستاسو په شان بشر یم (خو) ما ته دا وحی

اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ فَاسْتَقِيْمُوْٓا اِلَيْهِ وَاسْتَغْفِرُوْهُ

زما طرف ته | دا چه ستاسو معبود | هم یو معبود دے | پس متوجه شئ | د ده طرف ته | او معافی غواړئ له ده نه

شوے ده چه ستاسو معبود یو دے نو (د) هغه (حکم منلو) ته نیغ ولاړ وسیږئ او بخښنه تر ے نه غواړئ

وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ ۞ الَّذِيْنَ لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ

او هلاکت دے | مشرکانو د پاره | کوم چه | نه ورکوی | زکوٰة | او دوی

او مشرکانو د پاره ډیره لویه تباهی مقرره ده۔ څوک چه زکوٰة نه ورکوی، او د

بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۞ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

د آخرت (هم) | منکران دی | بیشکه | کوم خلق | چه ایمان راوړی | او عمل ئے وکړو

آخرت نه منکر وی۔ بیشکه کومو خلقو چه ایمان راوړو او نیک عمل

الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ ۞ قُلْ اَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُوْنَ

نیک | دوی د پاره | اجر دے | نه ختمیدونکے | ووایه | آیا تاسو | انکار کوئ

ئے وکړو هغوئ له داسے اجر مقرر دے چه چرے به هم نه ختمیږی، ته پتوس وکړه چه آیا تاسو خلق د هغه

بِالَّذِيْ خَلَقَ الْاَرْضَ فِيْ يَوْمَيْنِ وَتَجْعَلُوْنَ لَهٗٓ اَنْدَادًا

د هغه (الله) | چه پیدا ئے کړه | زمکه | په دوؤ ورځو کښے | او تاسو مقررووئ | د هٔ د پاره | شریک

ذات نه انکار کوئ چا چه په دوؤ ورځو کښے زمکه پیدا کړه؟ او هغهٔ له شریکان جوړوئ

ذٰلِكَ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ۞ وَجَعَلَ فِيْهَا رَوَاسِيَ مِنْ فَوْقِهَا

هم دا دے | رب | د ټولو جهانونو | او پیدا ئے کړل | په دے کښے | غرونه | د پاسه د دے

هم دا (الله) د ټول جهان رب دے۔ او هغهٔ په دے (زمکه) کښے د پاسه نه درانهٔ غرونه کیښودل۔

وَبٰرَكَ فِيْهَا وَقَدَّرَ فِيْهَآ اَقْوَاتَهَا فِيْٓ اَرْبَعَةِ اَيَّامٍ سَوَآءً

او برکت ئے کیښودو | په دے کښے | او مقرر ئے کړل | په دے کښے | د دے خوراکونه | په څلورو ورځو کښے | برابر دی

او په زمکه کښے ئے برکت کیښودو او (قسم قسم) غذا ګانے ئے پکښے په څلورو ورځو کښے تجویز کړے د ټولو څیزونو

لِّلسَّآئِلِيْنَ ۞ ثُمَّ اسْتَوٰٓى اِلَى السَّمَآءِ وَهِيَ دُخَانٌ فَقَالَ

د سوال کوونکو د پاره | بیا متوجه شو دے | آسمان طرف ته | او هغه | یو لوګے وو | پس وے فرمائیل

د پتوس کوونکو د پاره پوره دی۔ بیا (الله تعالیٰ) آسمان طرف ته متوجه شو او هغه لوګے غوندے وو، نو آسمان ته او

لَهَا وَلِلْاَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا ؕ قَالَتَا اَتَيْنَا طَآئِعِيْنَ ⑪

دے ته | او زمکے ته | چه تاسو دواړه راشئ | په خوښه | یا په ناخوښه | دواړو وویل | چه راغلو مونږ | په خوښه -

زمکے ته ئے وویل چه تاسو دواړه په رضا راشئ یا په زور - دواړو وویل چه مونږ درته په رضا حاضر یو۔

فَقَضٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ فِيْ يَوْمَيْنِ وَ اَوْحٰى فِيْ كُلِّ سَمَآءٍ

بیا دهٔ جوړ کړل دوی | اووه | آسمانونه | په دوو ورځو کښے | او حکم ئے ولیږلو | په هر آسمان کښے

نو په دوه ورځو کښے ئے اووه آسمانونه جوړ کړل ، او هر آسمان ته ئے د هغهٔ په مناسب

اَمْرَهَا ؕ وَزَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ ۖ ق وَحِفْظًا ؕ

د دهٔ د کار | او ښائسته کړلو مونږ | آسمان د دُنیا | په ډیوو (یعنی ستورو) سره | او حفاظت د پاره (هم)

حکم ورولیږلو او مونږ (د ټولو نه نزدے) د دنیا آسمان په ډیوو (یعنی په ستورو) ښائسته کړو او د هغهٔ حفاظت مو

ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ⑫ فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَقُلْ

دا | تدبیر دے | د ډیر زبردست | پوهه | بیا که چرے | دوی مخ واړولو | پس ووایه

وکړو ، دا د زبردست (او) علم والا (پروردګار) انتظام دے ، نو که اُوس هم دوئ (د حق نه) مخ وګرځوی نو ته ووایه

اَنْذَرْتُكُمْ صٰعِقَةً مِّثْلَ صٰعِقَةِ عَادٍ وَّثَمُوْدَ ⑬ اِذْ جَآءَتْهُمُ

چه زهٔ ویروم تاسو | له یو عذاب نه | په شان | د عذاب | د عاد | او د ثمود | هرکله چه راغلل دوی ته

چه زهٔ مو د یو داسے افت نه ویروم لکه په عاد او ثمود چه راپریوتے وو ، څهٔ وخت چه هغوئ

الرُّسُلُ مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا

پیغمبران | د دوئ له مخے نه | او د دوئ له وروستو نه | چه تاسو عبادت مهٔ کوئ | سیوا

ته د وړاندے وروستو نه پیغمبران راغلل (او وئے وئیل) چه د الله تعالیٰ نه بغیر (د بل چا)

اللّٰهَ ؕ قَالُوْا لَوْ شَآءَ رَبُّنَا لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً فَاِنَّا بِمَآ

د الله نه | دوئ وویل | که چرے غوښتلے | زمونږ رب | نو نازلے کړے به ئے وے | فرښتے | پس بیشکه مونږ | په هغه څهٔ

عبادت مهٔ کوئ (نو) نو هغوئ وویل که چرے زمونږ رب غوښتلے نو (زمونږ د هدایت د پاره) فرښتے به ئے رالیږلے وے، پس مونږ ستاسو

اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ⑭ فَاَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوْا فِي الْاَرْضِ

چه رالیږلے شوی یئ تاسو | په هغے | منکریو | پس قوم د عاد چه وو | دوی تکبر وکړو | په زمکه کښے

راوړے پیغام نهٔ منو - بیا د عاد قوم چه وو نو هغوئ د زمکے په مخ بر ناحقه غرور

بِغَيْرِ الْحَقِّ وَقَالُوْا مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ؕ اَوَلَمْ يَرَوْا

په ناحقه | او دوی وویل | څوک دی | زیات | له مونږ نه | په طاقت کښے | آیا دوئ نهٔ دی کتلی

شروع کړو ، او دائے وویل چه زمونږ نه زیات زور آور لا بل څوک کیدے شی ؟ (ته ګوره کنه) چه هغوئ

اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَهُمْ هُوَ اَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً ؕ

چه بیشکه الله | چا چه | پیدا کړل دوی | دے | ډیر زیات دے | له دوی نه | په طاقت کښے

دے نه وُنهٔ کتل چه کوم خدائے دوئ پیدا کړی دی هغه د دوئ نه زیات زور آور دے -

وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۱۵﴾ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا

او دوی | زمونږ له آیتونو نه | انکار کولو | پس راولیږله مونږ | په دوی باندِ | سیلئ | تُنده

او نکیا وُو زمونږ دَ آیتونو نه ئے انکار کولو ۔ نو مونږه پرے په سپیرو ورځو کښے یوه تُنده

فِيْٓ اَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ لِّنُذِيْقَهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيٰوةِ

په ورځو | سپیرو کښے | چه وُڅکوو مونږ دوئ ته | عذاب | دَ ذلت | په ژوند کښے

سیلئ راوو لیږله ، چه په دنیا کښے وربانِد دَ شرمونکی عذاب خوند

الدُّنْيَا ۚ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَخْزٰى وَهُمْ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۶﴾ وَاَمَّا ثَمُوْدُ

دَ دُنیا | او خامخا عذاب | دَ آخرت | زیات رُسوا کوونکے دے | او دوئ ته به مدد هم نه ملاویږی | او ثمود چه وو

وُڅکوو او دَ آخرت عذاب به ئے دَ نور زیات شرمیدو سبب شی او دَ هغوئ به مدد هم نه شی کولے، او ثمود چه

فَهَدَيْنٰهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى فَاَخَذَتْهُمْ

پس لاره وښودله مونږ دوئ ته | نو خوښ کړو دوی | ړوند والے | په هدایت | پس وُنیول دوی

وو نو مونږ ورته سمه لاره وُښودله خو هغوئ دَ هدایت په مقابله کښے گمراهی غوره کړه نو دَ خپلو عملونو

صٰعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُوْنِ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۱۷﴾ وَنَجَّيْنَا

آفت | دَ عذاب | سپکوونکی | په وجه دَ هغه څهٔ | چه دوی به کول ۔ | او نجات ورکړو مونږ

په سبب دَ یو شرمونکی عذاب آفت راوونیول ۔ او مونږ هغه خلق

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴿۱۸﴾ وَيَوْمَ يُحْشَرُ اَعْدَآءُ اللّٰهِ

هغو ته چه | ایمان ئے راوړے وو | او دوی به | پرهیز گاری کوله | او په کومه ورځ | چه راجمع به کړے شی | دُښمنان | دَ الله

چه ایمان ئے راوړو او مونږ نه ویریدل (دَ دے عذاب نه) بچ کړل ۔ او په کومه ورځ چه دَ الله تعالیٰ دښمنان

اِلَى النَّارِ فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ﴿۱۹﴾ حَتّٰٓى اِذَا مَا جَآءُوْهَا

دَ دوزخ طرف ته | نو دوی به | (په ډلو کښے) تقسیم کړے شی | تر دے چه | هر کله | دوی راشی هغے ته

دوزخ ته راجمع کړے شی نو بیا به په ډلو کښے تقسیم کړے شی ۔ تر دے چه دوزخ ته نزدے ورشی

شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ وَاَبْصَارُهُمْ وَجُلُوْدُهُمْ بِمَا

نو گواهی به ورکړی | په دوئ باندِ | دَ دوئ غوږونه | او دَ دوئ سترگے | او دَ دوئ څرمنے | په هغه څهٔ چه

نو خپل غوږونه او سترگے او څرمنے به پرے گواهی ورکړی چه دوئ به (په دُنیا کښے)

كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۰﴾ وَقَالُوْا لِجُلُوْدِهِمْ لِمَ شَهِدْتُّمْ عَلَيْنَا ۭ

دوئ به کول | او دوئ به وائی | خپلو څرمنو ته | (چه) ولے | گواهی ورکړه تاسو | په مونږه

څهٔ څهٔ کارونه کول ۔ او دوئ به خپلو څرمنو ته وائی چه تاسو رابانِدِ ولے گواهان شوئ؟

قَالُوْٓا اَنْطَقَنَا اللّٰهُ الَّذِيْٓ اَنْطَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَّهُوَ خَلَقَكُمْ

دوی به ووائی | چه گویا کړو مونږ | الله | چا چه | گویا کړے دے | هر څیز | او دهٔ | پیدا کړئ تاسو

هغوئ به ووائی چه مونږ هغه الله گویا کړی یو چا چه هر یو څیز گویا کړے دے ، او هغهٔ تاسو اول ځل پیدا

اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ

په اول ځل | او دَ دهٔ طرف ته به | تاسو واپس کرځولے شئ | او تاسو خپل ځان پټولے نهٔ شو | (له دے نه) چه | ګواهی به وکړی

پیدا کړئ وئ او دا چه هغهٔ ته به بوتل پسته ورځئ ۔ او تاسو (دَ ګناه کولو په وخت له دے خبرے نه) پټیدے نهٔ شوئ

عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ اَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُوْدُكُمْ وَلٰكِنْ ظَنَنْتُمْ

په تاسو باندِ | غوږونه ستاسو | او نهٔ سترګے ستاسو | او نهٔ څرمنے ستاسو | او لیکن | ګمان کولو تاسو

چه ستاسو غوږونه، ستاسو سترګے او ستاسو څرمنے به ستاسو خلاف ګواهی ورکوی، بلکه تاسو خو ګمان کولو

اَنَّ اللّٰهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۲﴾ وَذٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِيْ

چه الله | نهٔ پیژنی | ډیر | له هغه څهٔ نه | چه تاسو ئے کوئ | او ستاسو هم دا ګمان وو | چه

چه الله تعالیٰ ستاسو ډیر کارونه، چه تاسو ئے کوئ هم نهٔ پیژنی نه ۔ او ستاسو هم دے ګمان چه تاسو

ظَنَنْتُمْ بِرَبِّكُمْ اَرْدٰىكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۲۳﴾

تاسو کړے وو | دَ خپل رب په حقله | هم دهٔ هلاک کړئ تاسو | پس شوئ تاسو | له نقصان موندونکو نه

په دَ خپل رب په حقله کولو تاسو ئے برباد کړئ ۔ او تاسو په تاوانیانو کښے پاتے شوئ ۔

فَاِنْ يَّصْبِرُوْا فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ۚ وَاِنْ يَّسْتَعْتِبُوْا فَمَا هُمْ

بیا که چرے | دوی صبر وکړی | نو (هم) اور | تیکاؤنړه دهٔ | دَ دوی | او که چرے | دوی معافی غواړی | پس نهٔ دی دوی

نو اوس که دوی صبر (هم) وکړی خو هم دوزخ دَ دوی تیکاؤنړه دهٔ ، او که چرے دوی توبه وکړی نو دَ دوی

مِّنَ الْمُعْتَبِيْنَ ﴿۲۴﴾ وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَآءَ فَزَيَّنُوْا

چه معافی په وکړے شی دوی ته | او مقرر کړل موږ | دوی دَ پاره | څهٔ ملګری | نو هغوی ښائسته ښکاره کړل

توبه به نهٔ شی قبلولے ۔ او موږ دوی سره (په دنیا کښے) څهٔ ملګری مقرر کړی وو نو هغوی به ورته

لَهُمْ مَّا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَحَقَّ عَلَيْهِمُ

دوی ته | هغه څهٔ چه | چه دَ دوی وړاندِ وو | او هغه څهٔ چه دَ دوی وروستو وو | او ثابته شوه | په دوی باندِ

خپل وړاندِ وروستو عملونه ښائسته ښکاره کول ، او په دوی باندِ هم دَ الله تعالیٰ

الْقَوْلُ فِيْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۚ

وعدهٔ دَ عذاب | په هغه اُمتونو کښے | چه تیر شوی دی | وړاندِ له دوی نه | له پیریانو | او انسانانو نه

قول پوره شو (لکه) دَ نورو وړومبنو اُمتونو په شان ، کهٔ پیریان وو او کهٔ بنیادم وو

اِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۲۵﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَسْمَعُوْا لِهٰذَا

بیشکه دوی | وُو | نقصان موندونکی | او وُوئیل | هغو کسانو چه | کافران وو | چه مهٔ اَوری تاسو | دا

بیشکه چه دوی په تاوان کښے پاتے شول ۔ او (اے نبیؐ!) کافران وائی چه دا قرآن مهٔ

الْقُرْاٰنِ وَالْغَوْا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُوْنَ ﴿۲۶﴾ فَلَنُذِيْقَنَّ الَّذِيْنَ

قرآن | او شور کوئ | په دے کښے | دَ پاره دَ دے چه تاسو | غالب شئ | پس خامخا به وڅکوو موږ | هغه کسانو ته

اَورئ او (کله چه لوستے شی نو) پکښے شور کوئ شاید چه غلبه بیا مومئ ۔ نو موږ به دے کافرانو ته

كَفَرُوْا عَذَابًا شَدِيْدًا ۙ وَّلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَسْوَاَ الَّذِيْ كَانُوْا
چه کافران دی | عذاب | سخت | او مونږ به دوی له ضرور بدله ورکړو | دَ هغه بنکاره بدُ کارونو | چه دوی به
سخت عذاب خوند وُبنایو - او دَ خپلو بنکاره بدو کارونو سزا ئمانے

يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۷﴾ ذٰلِكَ جَزَآءُ اَعْدَآءِ اللّٰهِ النَّارُ ۚ لَهُمْ فِيْهَا
کول | هم دا | سزا ده | دَ دُښمنانو | دَ الله | اور | دوی دَ پاره | په دے کښے
به ورکړو - دَ الله تعالیٰ دَ دُښمنانو هم دغه سزا ده (یعنی) دوزخ ، هم دغه دَ هغوئی دَ

دَارُ الْخُلْدِ ؕ جَزَآءً ۢ بِمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ﴿۲۸﴾
کور دے | دَ همیشه اوسیدلو | (دا) بدله (ده) | دَ هغه څۀ | چه دوئی به | زمونږ دَ آیتونو نه | انکار کولو -
همیشه اوسیدلو کور دے - دا دَ دے (خبرے) سزا ده چه هغوئی به زمونږ دَ آیتونو نه انکار کولو -

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا رَبَّنَآ اَرِنَا الَّذَيْنِ
او وائی به | هغه خلق چه | کافران دی | اے زمونږه ربه ! | وُښایه مونږ ته | هغه خلق چه
او کافران به وائی چه اے زمونږه ربه ! مونږ ته هغه دواړه قومه یعنی

اَضَلّٰنَا مِنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ اَقْدَامِنَا
مونږ ئے ګمراه کړی وو | له پیریانو | او انسانانو نه | چه مونږ وُمرږو هغه دواړه | دَ خپلو قدمونو لاندِ
هغه پیریان او انسانان وُښایه چه مونږه ئے ګمراه کړی وُو چه هغوئی لږ دَ ښپو لاندِ وُمرږو چه

لِيَكُوْنَا مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ ﴿۲۹﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ
چه شی دوی | له ډیرو ښکتو خلقو نه | بیشکه | هغه خلقو چه | وُئے وئیل | ربّ زمونږ | الله دے | بیا
بنۀ سپک شی - بیشکه کومو خلقو چه اقرار وُکړو چه زمونږ رب الله تعالیٰ دے بیا

اسْتَقَامُوْا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا
قائم پاتے شول | نازلیږی به | په دوی | فرښتے | چه تاسو مۀ ویریږئ | او غم مۀ کوئ
په دے قائم پاتے شو، نو په هغوئی به (دَ رحمت) فرښتے راکوزیږی (او وائی به) چه تاسو مۀ ویریږئ او مۀ غم کوئ

وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ﴿۳۰﴾ نَحْنُ
او خوشحاله شئ | په جنّت | دَ کوم چه | تاسو سره وعده کولے شی | هم مونږ یُو
او دَ جنّت زیرے واوُرئ دَ کوم چه تاسو سره وعده کولے شی ، مونږ دَ دنیا

اَوْلِيٰٓؤُكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَلَكُمْ فِيْهَا
ستاسو دوستان | په ژوند کښے | دَ دُنیا | او په آخرت کښے (هم) | او (دی به) تاسو دَ پاره | په دے کښے
په ژوند کښے هم ستاسو دوستان وُو او په آخرت کښے به هم یُو او چه څۀ مو زړهٔ

مَا تَشْتَهِيْٓ اَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَدَّعُوْنَ ﴿۳۱﴾ ؕ نُزُلًا
هغه څۀ چه غواړی ئے | ستاسو نفسونه | او تاسو دَ پاره (به دی) | په دے کښے | هغه څۀ | چه تاسوئے غواړئ | دا میلمستیاده
غواړی هغه به درته په جنت کښے حاضر وی او تاسو دَ پاره به هغه هر څۀ موجود وی چه تاسوئے غواړئ دا میلمستیاده

مِّنْ غَفُوْرٍ رَّحِيْمٍ ﴿٣٢﴾ وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَآ

دَ بخښونکی | مهربان له طرفه | او دَچا | ډيره ښهٔ ده | خبره | له هغهٔ چا نه | چه دعوت ئې وکړو

دَ بخښونکی مهربان خدائے له طرف نه۔ او دَ هغے بنده نه ښکلے خبره دَ چا کيدے شی چه دَ الله تعالیٰ

اِلَى اللّٰهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَّقَالَ اِنَّنِىْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿٣٣﴾

الله طرف ته | او عمل ئې وُکړو | نيک | او وُئې وئيل | بيشکه زهٔ | له مسلمانانو نه يم

طرف ته بلنه کوی او نيک عمل کوی او دا وائی چه زهٔ له فرمانبردارو نه يم

وَلَا تَسْتَوِى الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ؕ اِدْفَعْ بِالَّتِىْ

او نهٔ دی برابر | نيکی | او بدی | (بدی) لرے کړه | په هغه (خبره)

او نيکی او بدی هيچرے برابر کيدے نهٔ شی۔ تهٔ په ښه (خوږه) طريقه (دُښمن) دَ

هِىَ اَحْسَنُ فَاِذَا الَّذِىْ بَيْنَكَ وَبَيْنَهٗ عَدَاوَةٌ

چه هغه ډير ښهٔ وی | نو فورًا | هغه کس | چه ستا په مينځ | او دَ هغهٔ په مينځ کښے | دُښمنی ده

ځان نه دفع کړه ، نو ستا او دَ چا تر مينځهٔ چه عداوت وی هغه به داسے

كَاَنَّهٗ وَلِىٌّ حَمِيْمٌ ﴿٣٤﴾ وَمَا يُلَقّٰهَآ اِلَّا الَّذِيْنَ

(شی به داسے) لکه چه هغه | دوست دے | گرم جوش | او نهٔ شی ورکولے دا (خبره) | مگر | هغه چا ته چه

(نرم) شی لکه مهربان آشنا۔ او دا نصيحت دَ هغه چا نصيب کيږی چه صبر

صَبَرُوْا ۚ وَمَا يُلَقّٰهَآ اِلَّا ذُوْحَظٍّ عَظِيْمٍ ﴿٣٥﴾ وَاِمَّا

صبر ئې وُکړو | او نهٔ شی ورکولے دا (خبره) | مگر | خاوند دَ نصيبے | لوئے ته | او که چرے

کولے شی ، او دا سبق هغه څوک اخستے شی چه دَ غټے نصيبے خاوند وی ، او کهٔ چرے

يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ

راشی تا ته | دَ شيطان له طرف نه | څهٔ وسوسه | نو پناه غواړه | دَ الله | بيشکه هم دے دے

ستا په زړهٔ کښے دَ شيطان له غاړے نه څهٔ وسوسه راپيدا شی نو دَ الله تعالیٰ نه پناه غواړه ، بيشکه دے هم

السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿٣٦﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهِ الَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ

اُوريدونکے | پوهه | او دَ دهٔ له نخښونه دی | شپه | او ورځ | او نُور

څهٔ اُوری په هر څهٔ پوهه دے ۔ او دَ دهٔ (دَ قدرت) په نخښو کښے شپه ، ورځ ، نُور او

وَالْقَمَرُ ؕ لَا تَسْجُدُوْا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ

او سپوږمئی | سجده مهٔ کوئی | نُور ته | او نهٔ سپوږمئی ته | او سجده کوه | الله ته

سپوږمئی ده نو تاسو مهٔ نُور ته سجدے لګوئی او مهٔ سپوږمئی ته او صرف الله تعالیٰ ته سجدے لګوئی

الَّذِىْ خَلَقَهُنَّ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ﴿٣٧﴾ فَاِنِ اسْتَكْبَرُوْا

چا چه | پيدا کړل دا ټيزونه | که چرے تاسو | هم دَ دهٔ | عبادت کوئی | پس کهٔ چرے کبر وکړی دوی

چا چه دا ټول څيزونه پيدا کړل کهٔ تاسو صرف دَ خدائے عبادت کول غواړئی۔ نو که دوئی لوئی وکړه

فَالَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُوْنَ لَهٗ بِالَّيْلِ

نو هغه (فرښتې) چه | نزدې دي | ستا رب نه | هغوئ پاکي بيانوي | د ده | د شپې

نو کوم (فرښتې) چه ستا د رب سره دي هغوئ شپه او ورځ د ده تسبيح

وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْئَمُوْنَ ﴿۳۸﴾ السجدة وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنَّكَ تَرَى

او د ورځې | او دوی | نهٔ ستړي کيږي | او د ده له نخښو نه دي | چه بيشکه ته وينې

کوي او هيڅ نهٔ ستړي کيږي. او د الله يوه نخښه دا ده چه زمکه درته او ده

الْاَرْضَ خَاشِعَةً فَاِذَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ

زمکه | عاجزه | بيا هر کله چه | مونږ راؤورولے | په دے باندې | اُوبهٔ | نو په حرکت کښې راغله

(خشکه) ښکاري، خو چه مونږ پرے اُوبه راؤوروو، نو هغه راپورته شي

وَرَبَتْ ط اِنَّ الَّذِيْٓ اَحْيَاهَا لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ط اِنَّهٗ

او راوُپړسيدله | بيشکه | چا چه | ژوندئ کړه دا | هم هغه به راژوندي کړي | مړي | بيشکه دے

او سمسوره شي، بيشکه چا چه دغه زمکه ژوندئ کړه هغه به مړي هم راژوندئ کوي، په دے کښې شک

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۳۹﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا

په هر څيز باندې | قادر دے | بيشکه | کوم خلق چه | کاږهٔ روان دي | زمونږ په ايتونو کښے

نشته چه هغه په هر څهٔ قدرت لري، کوم خلق چه زمونږ د ايتونو په حقله ګمراهي اختيار دوی

لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا ط اَفَمَنْ يُّلْقٰى فِي النَّارِ خَيْرٌ

هغوئ پټ نهٔ دي | له مونږ نه | نو آيا څوک چه | واچولے شي | په اور کښے | (هغه) ښهٔ دے

هغوئ زمونږ نه پټ پاتے کيدے نهٔ شي. نو آيا څوک چه په اور کښے واچولے شي هغه ښهٔ شو

اَمْ مَّنْ يَّاْتِيْٓ اٰمِنًا يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ط اِعْمَلُوْا مَا

يا | څوک چه | راشي | په امن سره | په ورځ | د قيامت | تاسو وکړئ | څهٔ چه

يا څوک چه د قيامت په ورځ په امن او امان (الله نه مخامخ) راشي؟ تاسو څهٔ چه موزړهٔ غواړی

شِئْتُمْ لا اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۴۰﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ

تاسو غواړئ | بيشکه دے | هغه څهٔ نه | چه تاسوئے کوئ | ښهٔ ګوري | بيشکه | هغه خلق چه

هغه کوئ، بيشکه څهٔ چه تاسو کوئ الله تعالیٰ ګوري وينې. کوم خلق چه د دے

كَفَرُوْا بِالذِّكْرِ لَمَّا جَآءَهُمْ ج وَاِنَّهٗ لَكِتٰبٌ عَزِيْزٌ ﴿۴۱﴾ لا

انکار ئے وکړو | د دے قرآن نه | هر کله چه هغه راغے دوئ ته | او بيشکه دا | يو کتاب دے | د لوئے قدر

قرآن نه هر کله چه هغه دوئ ته راغے انکار کوي (برباد شول) او دا قرآن ډير د عزت والا کتاب دے

لَّا يَاْتِيْهِ الْبَاطِلُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهٖ ط تَنْزِيْلٌ

نهٔ راځي ورته | باطل | د ده د وړاندې نه | او نهٔ د ده د وروستو نه | راليږلے شوے دے

چه غلطه خبره ورته نهٔ د وړاندې نه راتلے شي او نهٔ د وروستو نه، دا د حکمت او د تعريفونو

مِّنْ حَكِيْمٍ حَمِيْدٍ ﴿۴۲﴾ مَا يُقَالُ لَكَ اِلَّا مَا قَدْ قِيْلَ لِلرُّسُلِ

له طرفه دَ لوئے حکمت والا | ستائیلی شوی نه | نهٔ ویٔیلے کیږی | تاته | مگر | هغه څهٔ | چه ویٔیلے شوی وو | نورو پیغمبرانو ته

خاوند (خدائے) رانازل کړے (کتاب) دے۔ تاته نو څهٔ نهٔ خو هغه شان خبرے ویٔیلے شی لکه چه پخوانو پیغمبرانو ته ویٔیلے شوے

مِنْ قَبْلِكَ ؕ اِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ وَّذُوْ عِقَابٍ اَلِيْمٍ ﴿۴۳﴾ وَلَوْ

له تانه وړاندې | بیشکه | ستارب | لوئے بخښنے والا | او عذاب ورکوونکے دے | دردناک | او کهٔ چرے

وے۔ بیشکه چه ستارب بخښونکے هم دے او دَ دردناک عذاب خاوند هم دے۔ او کهٔ مونږ دا

جَعَلْنٰهُ قُرْاٰنًا اَعْجَمِيًّا لَّقَالُوْا لَوْلَا فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ ؕ

جوړ کړے مونږ دا | قرآن | په عجمی ژبه کښے | نو دوی به ویٔیل | چه ولے واضح نهٔ کړے شول | دَ دے آیتونه

قرآن په عجمی (ژبه کښے) رالیږلے وے نو دوئ به ویٔیل چه ولے دَ دے آیتونه صفا صفا بیان شوی نهٔ دی

ءَاَعْجَمِيٌّ وَّعَرَبِيٌّ ؕ قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى

آیا (کتاب) عجمی | او (رسول) عربی ؟ | ووایه | هغه خو | هغه کسانو دَ پاره | چه ایمان ئے راوړو | هدایت

دا لاڅنګه خبره دهٔ چه (کتاب) عجمی او (پیغمبر) عربی دے؟ (اے نبی!) ته ووایه چه دا کتاب ایماندارو له هدایت او

وَّشِفَآءٌ ؕ وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرٌ وَّهُوَ

او شفا دهٔ | او کوم خلق چه | ایمان نهٔ راوړی | دَ هغوئ په غوږونو کښے | درونوالے دے | او هغه

شفاء دهٔ۔ او څوک چه ایمان نهٔ راوړی دَ هغوئ په غوږونو کښے درونوالے راغلے دے او قرآن دَ هغوئ

عَلَيْهِمْ عَمًى ؕ اُولٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ مِنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ ﴿۴۴﴾

دَ دوئ په حق کښے | ړوندوالے دے | هم داخلق دی | (چه) آواز ورکولے شی دوی ته | له ځائے | لرے نه

په حق کښے ړوندوالے دے ، دا هغه کسان دی چه دَ ډیر لرے ځائے نه ورته آواز ورکولے شی۔

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِيْهِ ؕ وَلَوْلَا

او بیشکه ورکړے ؤ مونږ | موسیٰ ته | کتاب | پس اختلاف ؤکړے شو | په هغے کښے | او کهٔ چرے نهٔ وے شوے

او مونږ موسیٰ له هم کتاب ورکړے وو ، بیا په هغے کښے هم اختلاف وکړے شو۔ او کهٔ چرے ستادَ

كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ؕ وَاِنَّهُمْ

یو حکم | له وړاندې نه | ستادَ رب له طرفه | نو خامخا به فیصله شوے وه | دَ دوئ په مینځ کښے | او بیشکه دوی

رب له طرف نه یوه خبره له وړاندې نه فیصله شوے نهٔ وے نو دَ دوئ معامله به خلاصه شوے وه ، او دوئ دَ دے

لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ ﴿۴۵﴾ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ

په شک کښے (دی) | دَ دے په نسبت | په تردد کښے | څوک چه | عمل وکړی | نیک | نو دَ خپل ځان دَ پاره

کتاب په حقله په شک کښے متردد پراته دی۔ څوک چه نیک کارکوی نو خپل ځان له ئے کوی او

وَمَنْ اَسَآءَ فَعَلَيْهَا ؕ وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۴۶﴾

او څوک چه | بد کارکوی | نو هم په دهٔ دے (دَ دے وبال) | او نهٔ دے | ستارب | ظلم کوونکے | په بندګانو

څوک چه بد کارکوی نو تاوان ئے په خپل کوړ دے او ستارب به خپلو بندګانو زیاتے نهٔ کوی

إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَمَا تَخْرُجُ مِنْ ثَمَرَاتٍ

ده طرف ته | واپس ګرځولے شی | علم | دَ قیامت | او نهٔ راوځی | هیڅ میوه

دَ قیامت دَ علم حواله صرف الله تعالیٰ طرف ته ورکیدے شی ، او کومه میوه چه دَ خپلو غلافونو

مِنْ أَكْمَامِهَا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنْثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ ۚ وَيَوْمَ

له خپلو غلافونو نه راوځی | او نهٔ حامله کیږی | ښځه | او نهٔ زیږوی ماشوم | مګر دَ دهٔ په علم | او په کومه ورځ چه

نه راوځی یا کومه یوه ښځه چه حمل اخلی یا چه بچے راوړی نو دا ټول هغهٔ ته معلوم دی او په کومه ورځ

يُنَادِيهِمْ أَيْنَ شُرَكَائِي قَالُوا آذَنَّاكَ مَا مِنَّا مِنْ شَهِيدٍ ﴿٤٧﴾

آواز به وکړی دوی ته | کوم ځائے دی | زما شریکان ؟ | دوی به ووائی | مونږ تا ته عرض وکړو | چه نشته له مونږ نه | څوک ګواه .

به الله آواز وکړی چه (نن) زما هغه شریکان کوم ځائے دی ؟ دوی به ووائی چه مونږ عرض وکړو چه مونږ ته هیڅ خبر نشته

وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَدْعُونَ مِنْ قَبْلُ ۖ وَظَنُّوا مَا لَهُمْ

او ورک به شی | له دوی نه | هغه څهٔ | چه دوی به بلل | له دے نه وړاندے | او خیال به کوی | چه نشته دوی ح پاره

او پخوا چه به ئے دَ کومو معبودانو عبادتونه کول هغه ټول به ترے نه ورک شی ، او پوهه به شی چه اوس دَ

مِنْ مَحِيصٍ ﴿٤٨﴾ لَا يَسْأَمُ الْإِنْسَانُ مِنْ دُعَاءِ الْخَيْرِ وَإِنْ مَسَّهُ

څهٔ خلاصے | نهٔ ستړے کیږی | انسان | له غوښتلو | دَ خیر نه | او که چرے | ورسیږی دهٔ ته

خلاصی زرګوډر نشته . انسان دَ خیر په دُعا غوښتلو نهٔ ستړے کیږی . او که چرے څهٔ تکلیف

الشَّرُّ فَيَئُوسٌ قَنُوطٌ ﴿٤٩﴾ وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ رَحْمَةً مِنَّا

تکلیف | نو مایوسه | نا اُمیده (شی) | او که چرے | مونږ وڅکووه دهٔ ته | رحمت | له خپل طرف نه

ورته ورسیږی نو بیا مایوسه او نا اُمیده شی ، او که مونږ ورته دَ خپل رحمت خوند ترخلے کړو

مِنْ بَعْدِ ضَرَّاءَ مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ هَٰذَا لِي وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ

پس له دے تکلیف نه | چه رسیدلے وو دهٔ ته | نو دے وائی چه | دا (خو) | زما حق دے | او زهٔ ګمان نهٔ کوم | چه قیامت

دَ یو داسے مصیبت نه پس چه پرے راغلے وو ، نو بیا وائی چه دا خو زما خپل حق وو ، او زهٔ دا نهٔ ګنړم چه قیامت

قَائِمَةً وَلَئِنْ رُجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّي إِنَّ لِي عِنْدَهُ لَلْحُسْنَىٰ ۚ

به قائم شی | او که چرے | زهٔ بیرته وګرځولے شم | خپل رب طرف ته | بیشکه | ما دَ پاره | دَ دهٔ سره به | ښهٔ حالت وی

راتلونکے دے ، که زهٔ هډو خدائے ته واپس ورسولے شوم نو زما به هلته هم ښکلے برخه وی .

فَلَنُنَبِّئَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِمَا عَمِلُوا وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنْ عَذَابٍ

پس مونږ به وښایو | هغه خلقو ته | چه منکر دی | هغه څه چه دوی به کول | او مونږ به وڅکوو دوی ته | یو عذاب

خو مونږ به کافرانو ته دَ هغوی ټول کارونه (یو په یو) په ګوته کړو ، او دَ سخت عذاب مزه به ورته

غَلِيظٍ ﴿٥٠﴾ وَإِذَا أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنْسَانِ أَعْرَضَ وَنَأَىٰ

ډیر سخت | او هر کله چه | مونږ انعام وکړو | په انسان | نو دے مخ واړوی | او بدله کړی

وښایو . او څهٔ وخت چه مونږ پو انسان ته نعمتونه وبخښو نو دے مخ واړوی او ....

بِجَانِبِهٖ ۚ وَاِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُوْ دُعَآءٍ عَرِيْضٍ ﴿٥١﴾ قُلْ اَرَءَيْتُمْ

خپله ډډه | او هر کله چه | ورسیږی دهٔ ته | تکلیف | نو دُعا ګانے کوی | اوږدے | ووایه | آیا کتلی دی تاسو

او جار باسی. او څهٔ وخت چه (ورته ډیر) تکلیف ورورسیږی بیا اوږدے اوږدے دُعا ګانے کوی (اے نبی!) ته ورته ووایه چه په دے

اِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ثُمَّ كَفَرْتُمْ بِهٖ مَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ هُوَ

که چرے وی هغه | دَ الله دَ طرف نه | بیا | انکار وکړئ تاسو | دَ هغے نه | نو څوک زیات ګمراه دے | له هغه چا نه | چه وی دے

هم پوهه کړئ چه که داکتاب دَ الله دَ طرف نه راغلے وی او تاسو ترے انکار وکړئ نو دَ هغه سړی نه غټ ګمراه به څوک وی چه دومره

فِيْ شِقَاقٍ بَعِيْدٍ ﴿٥٢﴾ سَنُرِيْهِمْ اٰيٰتِنَا فِي الْاٰفَاقِ وَفِيْٓ اَنْفُسِهِمْ

په مخالفت کښے | دَ لرے | ډیر زر به مونږ وښایو دوئ ته | خپلے نخښے | په دُنیا کښے | او دَ دوئ په نفسونو کښے

اوږد مخالفت کښے پروت وی. مونږ به دوئ ته خپلے نخښے په خواؤشا دنیا کښے هم وښایو او دَ دوئ په خپل ذات کښے دننه

حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُ الْحَقُّ ۗ اَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ

ترڅو چه | واضح شی | دوئ ته | چه دا (خبره) | حق دے | آیا کافی نهٔ دے | ستا رب

هم، ترڅو چه دا په ورته ثابته شی چه داکتاب حق دے. آیا ستا دَ رب دا خبره کافی نهٔ ده چه

اَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ﴿٥٣﴾ اَلَآ اِنَّهُمْ فِيْ مِرْيَةٍ

چه دے | په هر څیز باندے | ګواه دے | واورئ! | یقیناً دوئ | په شک کښے (پراته دی)

هغه پخپله په هر څیز باندے ګواه دے. یاد ساته چه دا خلق خپل رب نه دَ مخامخ کیدو

مِّنْ لِّقَآءِ رَبِّهِمْ ۗ اَلَآ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيْطٌ ﴿٥٤﴾

دَ ملاقات | دَ ربّ خپل نه | یاد ساته! | بیشکه دے | په هر څیز | احاطه کوونکے دے

په حقله شکمن دی، (خو) یاد ساته چه هغه دَ هر څیز نه راچاپیره دے.

سُوْرَةُ الشُّوْرٰى مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ ثَلٰثٌ وَّخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّخَمْسُ رُكُوْعَاتٍ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سوره شوریٰ په مکه کښے نازل شوه او په دے کښے ۵۳ آیتونه او ۵ رکوع ګانے دی | شروع کوم دَ الله په نوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے

حٰمٓ ﴿١﴾ عٓسٓقٓ ﴿٢﴾ كَذٰلِكَ يُوْحِيْٓ اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ ۙ

حٰمٓ | عٓسٓقٓ | دغه شان | وحی کوی | ستا طرف ته | او دَ هغو طرف ته | چه وړاندے له تا نه وو

حٰمٓ عٓسٓقٓ دغه شان تا ته او ستا نه وړومبنو (پیغمبرانو) ته الله تعالیٰ چه غالب

اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٣﴾ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ

الله | چه ډیر زبردست | حکمت والا دے | هم دَ دهٔ دی | څهٔ چه | په آسمانونو کښے | او څهٔ چه | په زمکه کښے دی

دَ حکمتونو خاوند دے وحی رالیږلے ده. ټول دَ دهٔ مال دے هر څهٔ چه په آسمانونو او په زمکه کښے دی

وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ ﴿٤﴾ تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْ فَوْقِهِنَّ

او دے | ډیر اوچت | ډیر لوئے دے | نزدے دے | چه آسمانونه | وچوی | دَ خپل بره نه

او دے ډیر اوچت او ډیر لوئے دے، کیدے شی چه آسمانونه دَ بره نه رامات شی

الْمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِمَنْ

فرښتې | تسبیح وائی | تعریف سره دَرب خپل | او بخښنه غواړی | دَ هغه چا دَ پاره

فرښتې دَ خپل رب تسبیح دَ حمد سره لګیا دی وائی ، او دَ زمکې دَ وګړو دَ پاره

فِي الْاَرْضِ ؕ اَلَآ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝٥ وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا

چه په زمکه کښې دی | واوره ! | بیشکه | الله | هم دے چې | بخښونکے | مهربان | او هغه خلق چه | نیولی ئے دی

بخښنه غواړی ، یاد ساته چه الله تعالیٰ بخښنه کوونکے رحم کوونکے دے . او چا چه دَ خدائے نه

مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ اللّٰهُ حَفِيْظٌ عَلَيْهِمْ ۖ وَمَآ اَنْتَ

دَ ده نه سیوا | دوستان | (هم) الله دے | نګران | په دوی باندِ | او نهٔ یئے ته

سیوا ځان له نور کارسازی نیولی دی الله هغوئ پخپله وینی ګوری او نهٔ دَ هغوئ

عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ۝٦ وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا

په دوی باندِ | ذمه وار | او دغه شان | مونږ وحی وکړه | ستا طرف ته | قرآن | په عربی ژبه کښې

ذمه وار نهٔ یئے . او هم دغه شان مونږ تا ته قرآن په عربی ژبه کښې درکړے دے

لِّتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا وَتُنْذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ

چه ته ووېروے | دَ مکې خلق | او هغه څوک | چه دَ دې نه چارچاپېره دی | او ته ووېروې | له ورځې دَ جمع کېدو نه

چه ته دَ مکې او دَ کلیو چاپیره (علاقو) خلق ووېروے ، او دَ قیامت دَ ورځې نه ئې ووېروے

لَا رَيْبَ فِيْهِ ؕ فَرِيْقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيْقٌ فِي السَّعِيْرِ ۝٧ وَلَوْ شَآءَ

چه شک نشته په دې کښې | یوه ډله به | په جنّت کښې (وی) | او یوه ډله به | په دوزخ کښې (وی) | او که چرې غوښتلے

چه دَ هغې په راتلو کښې هیڅ شک نشته یو توله به په جنت کښې او بل به په دوزخ کښې شی . او که الله تعالیٰ ته منظور

اللّٰهُ لَجَعَلَهُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ يُّدْخِلُ مَنْ يَّشَآءُ

الله | نو ضرور به ئې جوړ کړی وو دوی | هم یو اُمت | او لیکن | دے داخلوی | هغه څوک چه دے دے وغواړی

وے نو دوی ټول به ئې (په زور) په یوه لاره روان کړی وو ، خو هغه چه دَ چا په حقله وغواړی نو دَ خپل رحمت

فِيْ رَحْمَتِهٖ ؕ وَالظّٰلِمُوْنَ مَا لَهُمْ مِّنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۝٨ اَمِ

په خپل رحمت کښې | او ظالمان (چه دی) | نشته دَ دوی دَ پاره | څوک دوست | او نهٔ څوک مددګار | آیا

(دَ سورې) لاندې ئې راولی او دَ ظالمانو هیڅوک ملګرے او مددګار نشته ، آیا

اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۚ فَاللّٰهُ هُوَ الْوَلِيُّ وَهُوَ يُحْيِ

دوی نیولی دی | دَ ده نه سیوا | (نور) دوستان | پس هم الله دے | کارساز | او هم دے به | ژوندی کوی

دوی دَ الله تعالیٰ نه سیوا نور څوک کارسازی ځان له نیولی دی ؟ نو دَ هر چا کارساز (صرف) الله دے او هم دے دے

الْمَوْتٰى ۡ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝٩ وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيْهِ مِنْ شَيْءٍ

مړی | او دے | په هر څیز باندې | قادر دے | او هغه څهٔ چه اختلاف وکړو تاسو په هغې کښې | دَ څهٔ څیز

چه مړی ژوندی کوی او هم دے دے چه په هر څیز قادر دے او تاسو چه په کومه خبره کښې اختلاف کوئ

فَحُكْمُهٗۤ اِلَى اللّٰهِ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبِّيْ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۖۗ وَاِلَيْهِ

نو دَ هغې فیصله | الله سره ده | هم دا الله | زمارب دے | هم په ده | توکل کړے دے ما | او دَ ده طرف ته

نو دَ هغې فیصله فقط دَ الله په حواله ده هم دغه الله زمارب دے زه په ده توکل کوم او هم ده ته

اُنِيْبُ ۝۱۰ فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ جَعَلَ لَكُمْ

زه رجوع کوم | پیدا کوونکے | دَ آسمانونو | او دَ زمکے دے | ده جوړے کړے | تاسو دَ پاره

رجوع کوم ، دے دَ آسمانونو او دَ زمکے پیدا کوونکے دے ، هغهٔ تاسو له ستاسو دَ

مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا وَّمِنَ الْاَنْعَامِ اَزْوَاجًا ۚ يَذْرَؤُكُمْ فِيْهِ ؕ

خپله له تاسو نه | جوړے | او له څاروو نه | (هم) جوړے | دے بنوروی تاسو | په دے کښے

خپل جنس نه جوړے پیدا کړی دی او دغسے په څاروو کښے ئے جوړے سازے کړی دی چه دَ دے په ذریعه ستاسو نسل

لَيْسَ كَمِثْلِهٖ شَيْءٌ ۚ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ۝۱۱ لَهٗ مَقَالِيْدُ

نشته | په شان دَ ده | څهٔ څیز | او دے | آوریدونکے | بینا دے | ده سره دی | کُنجیانے

بنوروی ، دَ ده په شان هیڅوک نشته ۰ او دے هر څهٔ آوری او هر څهٔ وینی کوری ، دَ آسمانونو او دَ زمکے

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ

دَ آسمانونو | او دَ زمکے | دے فراخه کوی | روزی | چا دَ پاره چه | دے وُغواړی | او تنګوی

کُنجیانے دَ هغهٔ په اختیار کښے دی ـ هم دے دَ چا رزق چه وغواړی فراخه کوی او دَ چا چه وُغواړی تنګوی ئے ـ

اِنَّهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝۱۲ شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا

بیشکه دے | په هر څیز باندے | پوهه دے | ده مقرر کړل | تاسو دَ پاره | له دین نه | هغه څهٔ

او بیشکه دے په هر څهٔ ښه پوهه دے ـ (الله تعالیٰ) تاسو دَ پاره هغه دین مقرر کړے دے ، دَ کوم

وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا وَّالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهٖٓ

دَ کوم چه حکم ورکړو ده | نوح ؑ ته | او هغه څهٔ | چه وحی ئے وکړه مونږ | ستا طرف ته | او دَ کوم حکم چه مونږ ورکړو

حکم چه ده نوح ؑ ته ورکړے وو ، او دَ کوم حکم چه مونږ تا ته درکړے دے او دَ کوم حکم چه مونږ

اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسٰٓى اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ وَلَا تَتَفَرَّقُوْا

ابراهیم ؑ | او موسیٰ ؑ | او عیسیٰ ؑ ته | چه قائم وُساتئ | دین | او اختلاف مهٔ کوئ

ابراهیم ؑ ، موسیٰ ؑ او عیسیٰ ؑ ته ورکړے وو (هغه دا دے) چه تاسو په دین باندے قائم وُسیرئ ، او اختلاف په کښے

فِيْهِ ؕ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ مَا تَدْعُوْهُمْ اِلَيْهِ ؕ اَللّٰهُ

په دِے کښے | ګران ښکاری | مشرکانو ته | هغه څهٔ چه | بلئ تاسو دوئ | هغې ته | الله

مهٔ کوئ ، مشرکانو ته دا خبره ډیره ګرانه ښکاری کومے ته چه ته هغوئ رابلے ـ هم الله تعالیٰ

يَجْتَبِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يُّنِيْبُ ۝۱۳

غوره کوی | خپل شان ته | هغه څوک چه | دے وغواړی | او هدایت ورکوی | خپل طرف ته | هغه چا ته چه رجوع وکړی

څوک چه وُ غواړی (دَ هغې لا دے دَ پاره ئے) غوره کړی ، او هر څوک چه دَ ده طرف ته رجوع کوی هغه ته دَ خپل ځان طرف ته هدایت ورکوی

وَمَا تَفَرَّقُوٓا اِلَّا مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْیًا

او جُدا جُدا نهٔ شول دوی | مګر | پس | له هغې نه چه | راغے دوی ته | علم | دَ ضد په وجه

او دے خلقو پس له دے نه چه علم دوئی ته راغلے وو محض دَ سرکشئ او په خپل مینځ کښے دَ ضد په وجه

بَیْنَهُمْ ؕ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى

په خپل مینځ کښے | او که چیرے نهٔ وے | حکم | له وړاندې نه | ستا دَ رب له طرف نه | ترو وخت | مقرر پورے

تفرقه پیدا کړه او که ستا دَ رب له طرف نه (دَ مهلت) یوه خبره تر مقرر نیټے فیصله شوے نهٔ وے

لَّقُضِیَ بَیْنَهُمْ ؕ وَاِنَّ الَّذِیْنَ اُوْرِثُوا الْكِتٰبَ مِنۢ بَعْدِهِمْ

نو فیصله به شوے وه | دَ دوی په مینځ کښے | او بیشکه | کوم خلق چه | وارثان کړے شول | دَ کتاب | پس له دوی نه

نو دَ دوئی تر مینځه فیصله به خلاصه شوے وه - او چا ته چه دَ دغې امتونو نه پس کتاب ورکړلے شوے دے نو هغوئی دَ دغې

لَفِیْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِیْبٍ ﴿۱۴﴾ فَلِذٰلِكَ فَادْعُ ۚ وَاسْتَقِمْ

په شک کښے دی | دَ دے په نسبت | تردد کښے دی | پس دے (دین) طرف ته | دعوت ورکړه | او قائم اوسه

کتاب په حقله شکمن او تردد دی. پس ته دوئی هم دے (حق دین) طرف ته رابله او لکه څنګه چه درته

كَمَآ اُمِرْتَ ۚ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ ۚ وَقُلْ اٰمَنْتُ بِمَآ اَنْزَلَ

څنګه چه تا ته حکم شوے دے | او پیروی مهٔ کوه | دَ دوئی دَ خواهشاتو | او ووایه | چه ما ایمان راوړو | په هغه څهٔ | چه نازل کړو

حکم شوے دے دغسے (په سمه لار) قائم وُسیږه او دَ دوئی په خواهشونو پسے مه ځه - او ووایه چه الله څومره کتابونه رانازل کړی

اللّٰهُ مِنْ كِتٰبٍ ۚ وَاُمِرْتُ لِاَعْدِلَ بَیْنَكُمْ ؕ اَللّٰهُ رَبُّنَا

الله | کتاب | او ما ته حکم شوے دے | چه زهٔ انصاف وکړم | ستاسو مینځ کښے | الله | زمونږ رب دے

کړی دی ما په هغې ټولو ایمان راوړے دے او ما ته حکم شوے دے چه ستاسو تر مینځه دِ (همیشه) انصاف کوم، الله زمونږ او ستاسو

وَرَبُّكُمْ ؕ لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ؕ لَا حُجَّةَ بَیْنَنَا

او ستاسو (هم) رب دے | مونږ دَ پاره | زمونږ عملونه | او تاسو دَ پاره | ستاسو عملونه | نشته هیڅ جګړه | زمونږ په مینځ کښے

دَ ټولو رب دے او (په آخرت کښے) مونږ دَ پاره زمونږ عملونه او تاسو دَ پاره ستاسو عملونه دی، زمونږ او ستاسو تر مینځه څهٔ بحث

وَبَیْنَكُمْ ؕ اَللّٰهُ یَجْمَعُ بَیْنَنَا ۚ وَاِلَیْهِ الْمَصِیْرُ ﴿۱۵﴾ وَالَّذِیْنَ یُحَآجُّوْنَ

او ستاسو په مینځ کښے | الله | به جمع کړی | مونږ ټول | او هم دَ دهٔ طرف ته | واپس تلل دی | او کوم خلق چه | جګړه کوی

نشته، الله تعالیٰ به مونږ ټول جمع کړی او هم دَ دهٔ طرف ته واپس تلل دی او هغه خلق چه دَ الله تعالیٰ په باره

فِی اللّٰهِ مِنۢ بَعْدِ مَا اسْتُجِیْبَ لَهٗ حُجَّتُهُمْ دَاحِضَةٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ

دَ الله په حقله | پس له دے نه | چه قبول کړے شو فرمان | دَ دهٔ | حجت دَ دوی | باطل دے | په نزد دَ رب دَ دوی

کښے جګړه کوی دَ دے نه پس چه هغه منلے شوے دے دَ هغوئی دلیل دَ رب په نزد باطل دے، او

وَعَلَیْهِمْ غَضَبٌ وَّلَهُمْ عَذَابٌ شَدِیْدٌ ﴿۱۶﴾ اَللّٰهُ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ

او په دوی باندې | غضب دے | او دوی دَ پاره | عذاب دے | سخت | هم الله | چا چه | نازل کړو

غضب پرے راتلونکے دے، او سخت عذاب ورله مقرر دے - الله تعالیٰ هغه ذات دے چه کتاب او

الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ وَالْمِيْزَانَ ؕ وَمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيْبٌ ﴿۱۷﴾

کتاب | رښتینې | اومیزان (هم) | او تا ته څهٔ معلومه ده | شاید چه قیامت | نژدے وی

(د انصاف) تله ئے په حقه را نازل کړل ، او تا ته څهٔ معلومه ده شاید چه قیامت نژدے وی

يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهَا ۚ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مُشْفِقُوْنَ

دوئ زر غواړی | هغه | هغه خلق چه | ایمان نهٔ لری | په دے | او کوم خلق چه | ایمان لری | دوئ ویریږی

کوم خلق چه په دے ایمان نهٔ لری دے د پاره ئے تلوار جوړ کړے دے او څوک چه ایماندار دی نو هغوئ ترے ن

مِنْهَا ۙ وَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهَا الْحَقُّ ؕ اَلَآ اِنَّ الَّذِيْنَ يُمَارُوْنَ فِى السَّاعَةِ

له دے نه | او دوی پوهیږی | چه دا | حقیقت دے | واورهٔ! | بیشکه | کوم خلق چه | جګړے کوی | د قیامت په حقله

ویره کوی او دا عقیده لری چه قیامت برحقه دے - یاد سانه ! چه څوک د قیامت په حقله جګړے کوی هغوئ

لَفِىْ ضَلٰلٍۢ بَعِيْدٍ ﴿۱۸﴾ اَللّٰهُ لَطِيْفٌۢ بِعِبَادِهٖ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ

هغوئ په ګمراهئ کښے دی | د لرے | الله | مهربان دے | په خپلو بندګانو | دے روزی ورکوی | هغه چا ته چه وغواړی

په ډیره غټه ګمراهئ کښے پراته دی . الله تعالیٰ په خپلو بندګانو مهربان دے چا له چه وغواړی نو (فراخه) روزی ورکوی

وَهُوَ الْقَوِىُّ الْعَزِيْزُ ﴿۱۹﴾ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الْاٰخِرَةِ نَزِدْ

او دے | ډیر طاقتور | زبردست دے | څوک | چه غواړی | فصل | د آخرت | نو ډیر به کړو مونږ

او هغه قوی دے زبردست دے . څوک چه د آخرت فصلونه غواړی مونږ ورله د آخرت

لَهٗ فِىْ حَرْثِهٖ ۚ وَمَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ

د هٔ د پاره | فصل د هغهٔ | او څوک | چه غواړی | فصل | د دُنیا | نو ورته به کړو مونږ ده ته

فصلونه ډیر وُو او څوک چه د دنیا فصلونه غواړی نو مونږ ورله دلته څهٔ ق

مِنْهَا ۙ وَمَا لَهٗ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْ نَّصِيْبٍ ﴿۲۰﴾ اَمْ لَهُمْ

له هغے نه | او نهٔ به وی | د هٔ د پاره | په آخرت کښے | څهٔ حصه | آیا | دوی د پاره

(کټه) ورکوو ، او دا سے سړی له به آخرت کښے هیڅ برخه نشته آیا د دوئ څوک (تجویز

شُرَكٰٓؤُا شَرَعُوْا لَهُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا لَمْ يَاْذَنْۢ بِهِ اللّٰهُ ؕ

(نور) شریکان دی | چه مقرر ئے کړل | دوئ د پاره | له دین نه | هغه څهٔ چه | حکم نهٔ دے ورکړے | د هغے | الله

کړی) شریکان شته چه دا سے دین ئے ورله جوړ کړے دے چه خدائے د هغے اجازت ورکړے نهٔ دے

وَلَوْلَا كَلِمَةُ الْفَصْلِ لَقُضِىَ بَيْنَهُمْ ؕ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَهُمْ

او کهٔ چرته نهٔ وے | خبره | د فیصلے | نو فیصله به شوے وه | د دوئ په مینځ کښے | او بیشکه | کوم چه ظالمان دی | هغوئ د پاره

او کهٔ (د مهلت) فیصله شوے نهٔ وے نو د دوئ ترمینځهٔ فیصله به خلاصه شوے وه . او ظالمانو له دردناک

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۲۱﴾ تَرَى الظّٰلِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا كَسَبُوْا

عذاب دے | دردناک | تهٔ به وُوینے | ظالمان | چه وُیریږی به | له هغه څهٔ نه | چه دوی کړی دی

عذاب مقرر دے . تهٔ به دا ظالمان وُوینے چه د خپلو عملونو نه به (په خپله) ویریږی

وَهُوَ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ۗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

او دا | پریوتونکے دہ | پہ دوئ | او هغه کسان چه | ایمان ئے راوړو | او عمل ئے وکړو | نیک

حال دا چه هغه به پرے راپریوزی ، او څوک چه ایماندار دی او دَ نیکئ کاروَنه کوی

فِيْ رَوْضٰتِ الْجَنّٰتِ ۚ لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۗ ذٰلِكَ هُوَ

(دی به) په باغونو کښے | دَ جنتونو | دوی دَپاره به وی | هغه څه | چه دوی ئے غواړی | دَ خپل رب سره | هم دا دے

هغوئ به دَ جنتونو په باغیچو کښے اوسیږی چه څه غواړی نو خپل رب سره به ئے بیا مومی ، هم دغه خو لوئے

الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ﴿۲۲﴾ ذٰلِكَ الَّذِيْ يُبَشِّرُ اللّٰهُ عِبَادَهُ الَّذِيْنَ

فضل | ډیر لوئے | هم دا دے | هغه (فضل) | چه زیرے ئے ورکوی الله | خپلو بندګانو ته | کوم چه

انعام دے . دا هغه انعام دے چه الله تعالیٰ ئے خپلو ایماندارو او

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۗ قُلْ لَّآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا

ایمان ئے راوړو | او عمل ئے وکړو | نیک | ووایه | زهٔ نهٔ غواړم له تاسو نه | په دے باندِ | څهٔ اجر

نیکانو بندګانو ته زیرے ورکوی . (اے پیغمبره!) ته ووایه چه زهٔ تاسو نه (نور) هیڅ بدله نهٔ غواړم خو د

اِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبٰى ۗ وَمَنْ يَّقْتَرِفْ حَسَنَةً نَّزِدْ لَهٗ فِيْهَا

مګر | محبت | دَ رشتے | او څوک چه | کوی | نیکی | مونږ زیاتوو دهٔ دَپاره | په دے کښے

رشتے مینه محبت درنه غواړم . او څوک چه دَ نیکئ کاروَنه کوی نو مونږ به ورله په کښے نوره نیکی

حُسْنًا ۗ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ﴿۲۳﴾ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ

نیکی | بیشکه | الله | بخښونکے | قدردان دے | آیا | دوی وائی | چه دهٔ تړلی دی | په الله باندِ

زیاتوو ، بیشکه چه الله بخښونکے قدردان دے . آیا دوی وائی چه دے پیغمبر په خدائے دروغ بیات

كَذِبًا ۚ فَاِنْ يَّشَاِ اللّٰهُ يَخْتِمْ عَلٰى قَلْبِكَ ۗ وَيَمْحُ اللّٰهُ الْبَاطِلَ

دروغ | پس که چرے | وُغواړی الله | نو مهر به وُلګوی | ستا په زړهٔ | او نابودَه به کړی | الله | باطل

تړلے دے ، تو که خدائے وُغواړی نو ستا په زړهٔ به تاپه وُلګوی او الله تعالیٰ باطل خبرے محوکوی

وَيُحِقُّ الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ ۗ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۲۴﴾ وَ

او ثابتوی | حق | په خپل کلام سره | بیشکه دے | ښهٔ پوهه دے | په رازونو دَ سینو | او

او حق خبرے په خپل حکم ثابتے ساتی ، هغهٔ ته دَ زړونو پټ رازونه په ښهٔ شان معلوم دی . او الله

هُوَ الَّذِيْ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهٖ وَيَعْفُوْا عَنِ السَّيِّاٰتِ

هم دے دے چه | قبلوی | توبه | دَ خپلو بندګانو | او معاف کوی | بدیانے

داسے ذات دے چه دَ خپلو بندګانو توبے قبلوی او ګناهونه ورته معاف کوی

وَيَعْلَمُ مَا تَفْعَلُوْنَ ﴿۲۵﴾ وَيَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

او پوهیږی | په هغه څهٔ چه تاسو ئے کوئ | او (دُعا) قبلوی | دَ هغو چه | ایمان ئے راوړو | او | عملونه ئے وکړل

او تاسو چه څهٔ کاروَنه کوئ په هغے باندِ خبروی . او دَ هغو خلقو دُعا قبلوی چه ایمان راوړی او نیک کاروَنه

الصّٰلِحٰتِ وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ۭ وَالْكٰفِرُوْنَ لَهُمْ عَذَابٌ

نیک | اوزیات ورکوی دوی ته | له خپل فضل نه | او کافران (چه دی) | دوی دَپاره | عذاب دے

کوی او په خپل فضل باندِ ورله زیات (اجر) ورکوی ، او څوک چه کافران دی هغوئی له سخت عذاب

شَدِيْدٌ ﴿۲۶﴾ وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوْا فِي الْاَرْضِ

سخت | اوکهٔ چرے | فراخه کړی | الله | روزی | دَ خپلو بندګانو | نو خامخا به فساد کولے دوی | په زمکه کښے

مقرر دے۔ اوکهٔ الله تعالیٰ خپلو بندیانو له روزی (ډیره) فراخولے نو هغوئی به په دُنیا کښے شرارتونه کول، لیکن

وَلٰكِنْ يُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ ۭ اِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرٌ

لیکن | دے بښکته رالیږی | په اندازه | هغه څهٔ چه دے ئے غواړی | بیشکه دے | دَ خپلو بندګانو نه | ښهٔ خبردار دے

الله تعالیٰ خو په یو اندازه څومره چه ئے غواړی روزی ښکته رالیږی، بیشکه دے دَ خپلو بندګانو نه خبردار (او) هر څهٔ

بَصِيْرٌ ﴿۲۷﴾ وَهُوَ الَّذِيْ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا وَيَنْشُرُ

هرڅهٔ وینی | او دے هغه ذات دے چه | راورَوی | باران | پس له دے نه | چه دوی نا اُمیده شی | او ښورَوی

وینکوری ، او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه دَ خلقو دَ نا اُمیدئی نه پس باران راورَوی ، او خپل رحمت

رَحْمَتَهٗ ۭ وَهُوَ الْوَلِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿۲۸﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ

خپل رحمت | او دے دے | کارساز | ستائیلے شوے | او | دَ دهٔ له نخښونه دی | پیدا کول

ښورَوِی او هغه دَ هر چا کارساز دَ تعریفونو قابل دے ۔ او دَ الله تعالیٰ په قدرتونو کښے دَ آسمانونو او دَ

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَثَّ فِيْهِمَا مِنْ دَآبَّةٍ ۭ وَهُوَ

دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او هغه څهٔ | چه ښوارهٔ کړی دی | په دے کښے | ساه والا څیزونه | او دے

زمکے پیدا کول دی او کوم دَ ساه څیزونه چه په دے دواړو (مزکه آسمان) کښے ئے ښوارهٔ کړی دی ، او هغه چه

عَلٰى جَمْعِهِمْ اِذَا يَشَآءُ قَدِيْرٌ ﴿۲۹﴾ وَمَآ اَصَابَكُمْ مِّنْ مُّصِيْبَةٍ

په جمع کولو دَ دوی | هر کله چه | دے ئے غواړی | قدرت لری | او هغه څهٔ | چه ورسیږی تاسو ته | له مصیبت نه

کله ئے غواړی نو دَ دوی په راجمع کولو قادر دے ۔ او تاسو ته چه هر څهٔ مصیبت در رسی ، نو

فَبِمَا كَسَبَتْ اَيْدِيْكُمْ وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ ﴿۳۰﴾ وَمَآ

پس په وجه دَ دے | چه کړی دی | لاسونو ستاسو | او دے معاف کوی | ډیر (ګناهونه) | او نهٔ

دَ خپل عمل دَ لاسه به در رسی ، او ډیر ګناهونه خو درنه (الله) معاف کوی ۔ او تاسو

اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ ښ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ

یئ تاسو | عاجزه کوونکی | په زمکه کښے | او نشته دے | تاسو دَپاره | سیوا | دَ الله نه

هغه دَ زمکے په مخ باندِ عاجزه کولے نهٔ شئ ، او دَ الله تعالیٰ نه سیوا ستاسو هیڅوک ملګرے

مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۳۱﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهِ الْجَوَارِ فِي الْبَحْرِ كَالْاَعْلَامِ ﴿۳۲﴾

څوک کارساز | او نهٔ څوک مدد ګار | او دَ دهٔ له نخښونه دی | جهازونه | په دریاب کښے | په شان دَ غرونو

یا مدد ګار نشته ۔ او دَ هغهٔ په نخښو کښے (یوه نخښه ستاسو) جهازونه دی چه دَ غرونو په شان په سمندر کښے روان دی

اِنْ یَّشَاْ یُسْکِنِ الرِّیْحَ فَیَظْلَلْنَ رَوَاکِدَ عَلٰی ظَهْرِهٖ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ

که چیرې ئې وغواړی | نو وُ به دروی | هوا | نوشی به هغه | ولاړ | په شا (سطح) دَدے | بیشکه | په دے کښے

که هغه وُغواړی نو بادونه به وُدروی نو دَ سمندر په سینه به په ځائے ولاړ پاتے شی ، په دے کښے دَ

لَاٰیٰتٍ لِّکُلِّ صَبَّارٍ شَکُوْرٍ ۝۳۳ اَوْ یُوْبِقْهُنَّ بِمَا کَسَبُوْا

نخښے دی | دَ پاره دَ هر | صبرکوونکی | شکرکوونکی | یا تباه کړی دوی | په سبب دَ هغه څهٔ | چه کول به دوی

هر صابر شکرگزار بنده دَ پاره نخښے پرتے دی یا (که وغواړی نو) دَ دوئی دَ عملونو په سبب دَ جهازونه تباه

وَیَعْفُ عَنْ کَثِیْرٍ ۝۳۴ وَّیَعْلَمَ الَّذِیْنَ یُجَادِلُوْنَ فِیْٓ اٰیٰتِنَا ؕ

او معاف کوی هم | ډیر | او پوهه دِشی | هغه خلق چه | جګړے کوی | زمونږ په آیتونو کښے

کړی او ډیر په کښے (بیاهم) معاف کړی او چه هغه خلقو ته معلومه شی څوک چه زمونږ په آیتونو کښے جګړے راوباسی چه

مَا لَهُمْ مِّنْ مَّحِیْصٍ ۝۳۵ فَمَآ اُوْتِیْتُمْ مِّنْ شَیْءٍ فَمَتَاعُ

نشته دوی دَ پاره | هیڅ خلاصے | پس هغه څهٔ | چه درکړے شول تاسو ته | له څهٔ څیزونه | پس لږ سامان دے

اوس هغوئی له هیچرته خلاصے نشته ۔ غرض دا چه څهٔ چه تاسوله درکړے شوی دی هغه تش دَ دنیا

الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ۚ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَیْرٌ وَّاَبْقٰی لِلَّذِیْنَ

دَ ژوندُ دَ دُنیا | او کوم (اجر) | چه الله سره دے | هغه غوره دے | او ډیر پائیدار دے | دَ پاره دَ هغه کسانو

ساز سامان دے او الله تعالیٰ سره چه څهٔ دی هغه دَ دے نه ډیر غوره او باقی پاتے کیدونکی دی دا (نعمتونه) دَ

اٰمَنُوْا وَعَلٰی رَبِّهِمْ یَتَوَکَّلُوْنَ ۝۳۶ وَالَّذِیْنَ یَجْتَنِبُوْنَ کَبٰٓئِرَ

چه ایمان ئے راوړ | او په خپل رب باندِ | توکل کوی | او کوم خلق چه | ځان ساتی | له لویو

هغه چا دَ پاره دی چه ایمان راوړی او په خپل رب باند توکل کوی او څوک چه دَ لویو لویو ګناهونو او دَ بے شرمئ

الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ وَاِذَا مَا غَضِبُوْا هُمْ یَغْفِرُوْنَ ۝۳۷

ګناهونو نه | او له بے حیایونه | او هر کله چه | غصه کښے راشی | نو دوی معاف کوی ۔

دَ خبرونه ځان بچ ساتی ، او هر کله چه هغوئی ته غصه راشی نو معافی کوی ۔

وَالَّذِیْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَمْرُهُمْ

او کوم خلق چه | حکم منی | دَ خپل رب | او | قائموی | مونځ | او دَ دوی کار دے

او څوک چه دَ خپل رب حکم منی ، او دَ مونځ پابندی ساتی او هر کار په خپل

شُوْرٰی بَیْنَهُمْ ۠ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ یُنْفِقُوْنَ ۝۳۸ وَالَّذِیْنَ اِذَآ

مشوره کول | په خپل مینځ کښے | او له هغه څهٔ نه | چه ورکړی دی مونږ دوی ته | دوی خرڅ کوی | او هغه خلق چه | هر کله

مینځ کښے په مشورے سره ترسره کوی او مونږ چه څهٔ ورکړی دی دَ هغے نه خرڅ کوی او دا سے خلق دی چه ظلم

اَصَابَهُمُ الْبَغْیُ هُمْ یَنْتَصِرُوْنَ ۝۳۹ وَجَزٰٓؤُا سَیِّئَةٍ سَیِّئَةٌ مِّثْلُهَا ۚ

ورسیږی دوئی ته | ظلم | نو دوئی | بدله اخلی ۔ | او بدله | دَ بدئی | بدی ده | په شان دَ هغے

زیاتے پرے وکړے شی نو دَ برابرئی بدله اخلی ۔ او دَ بدئی بدله (بلسره) هغسے بد کول دی

فَمَنْ عَفَا وَاَصْلَحَ فَاَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ

پس څوک چه | معاف وکړی | او اصلاح وکړی | نو دَ ده اجر | په الله دے | بیشکه دے | نهٔ خوښوی

خو څوک چه معافی ورکړی او اصلاح وکړی نو دَ هغهٔ اجر دَ الله تعالیٰ په ذمه دے ، بیشکه ظالمان دَ الله تعالیٰ خوښ

الظّٰلِمِيْنَ ۝٤٠ وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهٖ فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِمْ

ظالمان | او خامخا څوک چه | بدله واخلی | خپل ځان باندې ظلم نه پس | پس هم دادی | نشته | په دوی باندې

نهٔ وی - او څوک چه دَ ظلم کیدلو نه پس دَ هغې هومره بدله واخلی نو په دغه کسانو هیڅ

مِّنْ سَبِيْلٍ ؕ ۝٤١ اِنَّمَا السَّبِيْلُ عَلَى الَّذِيْنَ يَظْلِمُوْنَ النَّاسَ

څهٔ الزام | بیشکه | الزام (خو) | په هغه خلقو باندې دے | چه ظلم کوی | په خلقو باندې

الزام نشته ، الزام خو بس په هغه چا راځی چه په خلقو باندې زیاتے کوی او

وَيَبْغُوْنَ فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ

او فساد کوی | په زمکه کښې | په ناحقه | هم دادی | چه دوی دَ پاره | عذاب دے

بر ناحقه په ملک کښې فساد ښوروی ، داسے خلقو له دردناک عذاب مقرر

اَلِيْمٌ ۝٤٢ وَلَمَنْ صَبَرَ وَغَفَرَ اِنَّ ذٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ ۝٤٣

دردناک | او هغه کس چه | صبر ئے وکړو | او معافی ئے وکړه | بیشکه | دا | ډیر له همت دَ کارونو نه دے.

دے - او څوک چه صبر وکړی او معافی ورکړی ، نو دا ډیر دَ همت کار دے.

وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ وَّلِيٍّ مِّنْۢ بَعْدِهٖ ؕ وَتَرَى

او هغه کس | چه گمراه ئے کړی | الله | پس نشته | دَ ده | څوک کارساز | پس له ده نه | او ته به ووینے

او کوم سړے چه الله گمراه کړی نو دَ ده نه پس دَ هغهٔ دَ پاره بل هیڅوک کارساز نشته او ظالمان

الظّٰلِمِيْنَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ يَقُوْلُوْنَ هَلْ اِلٰى مَرَدٍّ

ظالمان | هر کله چه | دوی ووینی | عذاب | (نو) وائی به | آیا | دَ واپس تلو (هم)

به درته ښکاره شی څهٔ وخت چه عذاب ووینی نو دا وینا به کوی چه آیا (دُنیا ته) دَ واپس تلو هم

مِّنْ سَبِيْلٍ ۝٤٤ وَتَرٰىهُمْ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا خٰشِعِيْنَ

څهٔ لار (شته) ؟ | او ته به ووینے دوی | چه دوی به مخامخ کولے شی | په دے دوزخ | ټیټ شوی

څهٔ صورت شته ؟ او ته به دغه کسان په داسے حال کښې ووینے چه دوزخ ته به مخامخ کولے شی ، دَ ذلت په وجه

مِنَ الذُّلِّ يَنْظُرُوْنَ مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ ؕ وَقَالَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا

له ذلت نه | دوی به گوری | په کتنے پټے | او وائی به | هغه کسان چه | ایمان ئے راوړے وو

به سر ټیټی ولاړ وی په نیم ژوبله سترګو به کتل کوی ، او ایماندار خلق به وائی چه

اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَاَهْلِيْهِمْ

بیشکه | نقصان موندونکی | هغه خلق دی | چه نقصان ئے ورکړو | خپلو ځانونو ته | او خپل کوروالو ته

واقعی په تاوان کښې هغه څوک پاتے شول چه خپل ځانونه او خپل بال بچ ئے دَ قیامت په ورځ

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اَلَاۤ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ فِيْ عَذَابٍ مُّقِيْمٍ ﴿۴۵﴾ وَمَا كَانَ

په ورځ دَ قیامت | واورئ! | بیشکه | ظالمان خلق به | په همیشه عذاب کښې وی | او نهٔ به وی

په خساره کښې واچول، یاد ساته! چه بیشکه ظالمان به همیشه په عذاب کښې پراته وی۔ او دَ هغوئ به

لَهُمْ مِّنْ اَوْلِيَآءَ يَنْصُرُوْنَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يُّضْلِلِ

دوی دَ پاره | څوک دوستان | چه مدد ورکړی دوی ته | سیوا | دَ الله نه | او څوک چه | ګمراه کړی

دَ الله تعالیٰ نه سیوا هیڅوک مددګار نهٔ وی چه دَ هغوئ امداد وُکړی۔ او څوک چه الله تعالیٰ ګمراه

اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ سَبِيْلٍ ﴿۴۶﴾ اِسْتَجِيْبُوْا لِرَبِّكُمْ مِّنْ قَبْلِ

الله | پس نشته | دهٔ دَ پاره | څهٔ لار | قبول کړئ | دَ خپل رب (حکم) | وړاندې له دے نه

کړی نو هغهٔ له (دَ هدایت) هیڅ لار نشته۔ تاسو دَ خپل رب حکمونه وُمنئ دَ دے نه وړاندې چه هغه

اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ ؕ مَا لَكُمْ مِّنْ مَّلْجَاٍ

چه | راشی | هغه ورځ | چه نشته واپس کیدل دَ هغې | دَ الله دَ طرف نه | نهٔ به وی تاسو دَ پاره | هیڅ دَ پناه ځائے

ورځ راشی چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه به هیڅوک بچ کیدے نهٔ شی، په هغه ورځ به تاسو چرته پناه مونده

يَّوْمَئِذٍ وَّمَا لَكُمْ مِّنْ نَّكِيْرٍ ﴿۴۷﴾ فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَمَاۤ اَرْسَلْنٰكَ

په دغه ورځ | او نهٔ به وی تاسو دَ پاره | څهٔ انکار | بیا که چرے | دوئ مخ واړوی | نو نهٔ یئے رالیږلے مونږ ته

نهٔ شئ او نهٔ به (دَ فیصلے منلو نه) انکار کولے شئ۔ نو که اوس هم دوئ مخ واړوی نو مونږ په دوئ باندې ته

عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ؕ اِنْ عَلَيْكَ اِلَّا الْبَلٰغُ ؕ وَاِنَّاۤ اِذَاۤ اَذَقْنَا

په دوئ باندې | نګهبان | نهٔ دی | په تا باندې | مګر | پیغام رسول | او بیشکه | هرکله چه | مونږ وُڅکوو

څهٔ نګران مقرر کړے نهٔ یئے۔ ستا په ذمه خو صرف (حکمونه) رسول دی۔ او مونږ چه یو انسان ته دَ

الْاِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً فَرِحَ بِهَا ۚ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ ۢ

انسان ته | له خپل طرف نه | رحمت | نو خوشحاله شی | په هغې | او که چرے | وُرسیږی دوئ ته | څهٔ بدی

خپلے مهربانئ خوند ورکړو نو هغه په هغے باندې ځان ته غاوره شی او که چرے خلقو ته دَ هغوئ دَ

بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ فَاِنَّ الْاِنْسَانَ كَفُوْرٌ ﴿۴۸﴾

په وجه دَ هغه څهٔ | چه وړاندې لیږلی دی | لاسونو دَ دوی | نو بیشکه | انسان | ډیر ناشکره دے

خپلو بدو عملونو په وجه څهٔ تکلیف وُرسیږی نو هم دغه انسان ناشکری شروع کړی۔

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ؕ يَهَبُ

الله دَ پاره دے | حکومت | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | دے پیدا کوی | څهٔ چه وُغواړی | دے عطا کوی

دَ آسمانونو او دَ زمکے بادشاهی یوازے دَ الله تعالیٰ ده، دے چه څهٔ غواړی پیدا کوی ئے، چاله چه

لِمَنْ يَّشَآءُ اِنَاثًا وَّيَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ الذُّكُوْرَ ﴿۴۹﴾ اَوْ يُزَوِّجُهُمْ

چاته چه | وُغواړی | جینکئ | او عطا کوی | چاته چه | وُغواړی | هلکان | یا جمع کوی دَ پاره دَ دوی

غواړی نو لونړه ورنه ورکوی، او چاله چه غواړی نو ځامن ورته ورکوی۔ یا ورله ځامن او لونړه

ذُكْرَانًا وَّاِنَاثًا ۚ وَيَجْعَلُ مَنْ يَّشَآءُ عَقِيْمًا ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌ

هلکان | او جینکۍ | او کړي دے | څوک چه | وغواړي | شنډ | بیشکه دے | پوهه

او دَ چا په حقله چه وغواړي نوشنډ ئے کړي ، هغه په هر څۀ پوهه دے دَ قدرتونو
جوړے جوړے ورکړي

قَدِيْرٌ ۝٥٠ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْيًا

قدرت والا دے | او ممکن نۀ دی | یو انسان دَ پاره | چه | کلام وکړي دۀ سره | الله | مګر | په وحی سره

خاوند دے . او دَ هیڅ بشر دا مرتبه نشته چه الله تعالیٰ دِ ورسره خبرے وکړي خو یا دا چه الهام ورته وکړي

اَوْ مِنْ وَّرَآئِ حِجَابٍ اَوْ يُرْسِلَ رَسُوْلًا فَيُوْحِيَ بِاِذْنِهٖ

یا | ورو ستو | له پردے نه | یا راو لیږي | (څوک) پیغمبر | پس دے وحی وکړي | دَ دۀ په حکم

او یا دَ پردے شا نه ، یا یوه فرښته راولیږي نو هغه ورته دَ الله په حکم دا سے واحی راوړي

مَا يَشَآءُ ؕ اِنَّهٗ عَلِيٌّ حَكِيْمٌ ۝٥١ وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ

څۀ چه دے وغواړي | بیشکه دے | دیر اوچت | دَ حکمت خاوند دے | او دغه شان | مونږ وحی راولیږله | تا ته

څۀ چه دَ الله مرضی وی الله ډیر اوچت دے دَ حکمتونو خاوند دے او دغسے مونږ تا ته (دا) وحی یعنی خپل حکم

رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا ؕ مَا كُنْتَ تَدْرِيْ مَا الْكِتٰبُ وَلَا الْاِيْمَانُ

یو روح (قرآن) | په خپل حکم | نۀ پوهیدلے ته | چه څۀ دے | کتاب | او نۀ ایمان ؟

رالیږلے دے ، تا ته معلومه نه وه چه کتاب څۀ څیز دے او ایمان څۀ ته وائی؟

وَلٰكِنْ جَعَلْنٰهُ نُوْرًا نَّهْدِيْ بِهٖ مَنْ نَّشَآءُ مِنْ عِبَادِنَا ؕ

او لیکن | ګرځوله مونږ دا | رڼا | چه مونږ ورکوو هدایت | په دے سره | چا ته چه | مونږ وغواړو | له خپلو بندګانو نه

لیکن مونږ دا (کتاب) نور جوړ کړے دے او دَ دے په ذریعه مونږ په خپلو بندګانو کښے چا ته چه غواړو هدایت ورکوو

وَاِنَّكَ لَتَهْدِيْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝٥٢ صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا

او بیشکه ته | هدایت کوے | سمے لارے طرف ته | دَ الله دَ لارے | دَ چا چه دی | هغه څۀ

او په دے کښے هیڅ شک نشته چه ته سمے لارے طرف ته هدایت کوے (یعنی) دَ هغه الله تعالیٰ لاره چه دَ آسمانونو

فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ اَلَآ اِلَى اللّٰهِ تَصِيْرُ الْاُمُوْرُ ۝٥٣ ع

چه په آسمانونو کښے دی | او هغه څۀ | چه په زمکه کښے دی | یاد ساته ! | طرف دَ الله ته | بیرته ورځی | کارونه

او دَ زمکے دَ ټولو څیزونو مالک دے ، یاد ساته چه ټول معاملے به الله تعالیٰ ته پستنه ورځی.

سُوْرَةُ الزُّخْرُفِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | تِسْعٌ وَّثَمَانُوْنَ اٰيَةً وَّسَبْعُ رُكُوْعَاتٍ

سوره زخرف په مکه کښے نازل شوه او | (شروع) کوم په نوم دَ الله چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۸۹ آیتونه او ۷ رکوع دی

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے.

حٰمٓ ۝١ۚ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝٢ۙ اِنَّا جَعَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ

حٰمٓ | قسم دے په کتاب | ښکاره | بیشکه | مونږ جوړ کړو دا | قرآن | په عربئ ژبه کښے | چه تاسو

حٰمٓ په دے واضحه کتاب باندے قسم دے. مونږ دا دَ عربئ ژبے قرآن (په دے غرض) جوړ کړے دے چه تاسو

تَعْقِلُوْنَ ③ وَاِنَّهٗ فِیْٓ اُمِّ الْكِتٰبِ لَدَیْنَا لَعَلِیٌّ حَكِیْمٌ ④

پوهه شئ | اوبیشکه هغه | په اصل کتاب کښې دے | موږ سره | دَاوچتے مرتبے | حکمت والا

پرے پوهه شئ . او بیشکه دا (قرآن) موږ سره په لوحِ محفوظ کښې دے دَاوچتے مرتبے اودَ حکمت نه ډک دے

اَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا اَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِیْنَ ⑤

نو آیا موږ به لرے کړو | له تاسو نه | دا ذکر | په اړولو سره | په دے چه | یئ تاسو | خلق | حد نه تیریدونکی

آیا موږ به تاسو نه دا (دَ) نصیحت (کتاب) په دے خبره واړوؤ چه تاسو دَ مناسب حد نه وړاندې تیریدونکی یئ؟

وَكَمْ اَرْسَلْنَا مِنْ نَّبِیٍّ فِی الْاَوَّلِیْنَ ⑥ وَمَا یَاْتِیْهِمْ مِّنْ نَّبِیٍّ اِلَّا

او څومره | ولیږل موږ | پیغمبران | په وړومبو امتونو کښې | او نهٔ به راتلو دوی ته | څوک پیغمبر | مګر

او موږ په پخوانو خلقو کښې څومره ډیر پیغمبران رالیږلی دی ؟ او دغې خلقو ته یو پیغمبر داسے نهٔ دے راغلے

كَانُوْا بِهٖ یَسْتَهْزِءُوْنَ ⑦ فَاَهْلَكْنَآ اَشَدَّ مِنْهُمْ بَطْشًا وَّمَضٰى

هغهٔ پورے به دوی توقے کولے | پس موږ هلاک کړل | چه زیات ؤو | له دوی نه | په طاقت کښې | او تیر شو

چه هغوئ ورپورے ملنډے کړے نهٔ وی؛ نو موږ هغه ټول کسان برباد کړل کوم چه دَ دے خلقو نه زورآور وو او دَ پخوانو خلقو سره

مَثَلُ الْاَوَّلِیْنَ ⑧ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

مثال | دَ پخوانو خلقو | او که چرے | تپوس وکړے ته له دوی نه | چه چا | پیدا کړل | آسمانونه | او زمکه

(څوځله) دغسے سلوک شوے دے. او (اے نبیٌ!) کهٔ تهٔ ترے نه تپوس وکړے چه (دا) آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی دی؟

لَیَقُوْلُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِیْزُ الْعَلِیْمُ ⑨ الَّذِیْ جَعَلَ لَكُمُ

نو دوی به ضرور ووائی | چه پیدا کړل دوی | ډیر زبردست | پوهه | چا چه | جوړه کړه | تاسو دَپاره

نو دوی به خامخا ووائی چه دا زبردست او ښهٔ پوهه (خدائے) پیدا کړی دی. هغه (خدائے) چه زمکه ئے درته

الْاَرْضَ مَهْدًا وَّجَعَلَ لَكُمْ فِیْهَا سُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ⑩

زمکه | فرش | او جوړے ئے کړے | تاسو دَپاره | په دے کښے | لارے | چه تاسو | لار بیا مومئی

فرش جوړه کړے ده . او په دے کښے ئے درته لارے جوړے کړی دی چه تاسو مطلب ته ورسیږئی.

وَالَّذِیْ نَزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ فَاَنْشَرْنَا بِهٖ بَلْدَةً

او چا چه | نازل کړلے | له آسمان نه | اوبهٔ | په اندازه | بیا ژوندے کړو موږ | په دے سره | ښار

او (الله) هغه ذات دے چه دَ بره نه ئے په اندازه اوبهٔ راوورولے ، نو بیا موږ په هغے باندې مړه زمکه راژوندئ

مَّیْتًا كَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ ⑪ وَالَّذِیْ خَلَقَ الْاَزْوَاجَ كُلَّهَا

مړ | هم دغه شان به | راویستلے شئ تاسو | او چا چه | پیدا کړے | جوړے | ټولے

کړه ، هم دغسے به تاسو (دَ قبرونو نه) راویستلے شئ . او (الله) هغه ذات دے چه ټول څیزونه ئے جوړے پیدا کړی دی

وَجَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْفُلْكِ وَالْاَنْعَامِ مَا تَرْكَبُوْنَ ⑫

او جوړے ئے کړے | تاسو دَپاره | کشتئ | او څاروی | په کوم چه | تاسو سوریږئ.

او تاسو له ئے کشتئ او څاروی پیدا کړی دی . چه تاسو پرے سورلئ کوئ.

لِتَسْتَوٗا عَلٰى ظُهُوْرِهٖ ثُمَّ تَذْكُرُوْا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ اِذَا

چه تاسو کښینئ | په شا ګانو دَ هغې | بیا تاسو یاد کړئ | نعمت | دَ رب خپل | هر کله چه

دَ پاره دَ دے چه تاسو دَ هغې په شا ټینګ کښینئ او (څهٔ وخت) چه ورباندې سوارهٔ شئ نو دَ الله تعالٰی نعمت

اسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ وَتَقُوْلُوْا سُبْحٰنَ الَّذِيْ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا

تاسو سم کښینئ | په هغې باندې | او ووایئ تاسو | پاک دے | هغه ذات چا چه | تابع کړله | مونږ دَ پاره | دا

را یاد کړئ ، او دا ووایئ چه هغه ذات پاک دے چه دا سے (عنټ عنټ) څیزونه ئے زمونږ تابع کړی دی

وَمَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِيْنَ ⑬ وَاِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ ⑭

او نهٔ وو مونږ | دَ دے | په قابو کښے راوستو والا | او بیشکه مونږ | طرف دَ رب خپل ته | واپس ګرځیدونکی یو.

کنی مونږ خو (په خپل همت) دا قابو کولے نهٔ شول. او مونږ به ټول خپل رب ته پسته ورځو.

وَجَعَلُوْا لَهٗ مِنْ عِبَادِهٖ جُزْءًا ۭ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَكَفُوْرٌ مُّبِيْنٌ ⑮ ع

اودوی مقرر کړو | الله دَ پاره | دَ دهٔ له بندګانو نه | یو جز | بیشکه | انسان | ناشکره دے | ښکاره.

او دوی دَ الله په بندګانو کښے هغهٔ له یو جزو مقرر کړے دے. واقعه دا ده چه انسان ښکاره ناشکره دے.

اَمِ اتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنٰتٍ وَّاَصْفٰىكُمْ بِالْبَنِيْنَ ⑯

آیا دهٔ نیولی دی | له هغه څهٔ نه | چه دے پیدا کوی | لونړه | او تاسو ئے غوره کړی یئ | ځامن

آیا هغهٔ دَ خپل مخلوق نه ځان له (هیله بیله) لونړه خوښے کړے او تاسو ئے دَ ځامنو دَ پاره غوره کړئ

وَاِذَا بُشِّرَ اَحَدُهُمْ بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمٰنِ مَثَلًا

او هر کله چه | زیرے ورکولے شی | یو ته له دوی نه | دَ هغه (جینئ) | کومه چه دهٔ جوړه کړه | دَ (الله) رحمٰن | هم جنس

او حال دا دے چه څهٔ وخت دوی په هغه څیز خبر کړے شی کوم چه دوی رحمٰن (خدائے) له ستا یلے دے.

ظَلَّ وَجْهُهٗ مُسْوَدًّا وَّهُوَ كَظِيْمٌ ⑰ اَوَمَنْ يُّنَشَّؤُا فِي الْحِلْيَةِ

نو شی | مخ دَ دهٔ | تور | او دے | له غم نه ډک شی | آیا څوک چه | پاللے کیږی | په ګالو کښے

نو مخ ئے خړ شی او ډیر زیات غمژن شی ، آیا څوک چه په ډول سنګار کښے ساتلے شی

وَهُوَ فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِيْنٍ ⑱ وَجَعَلُوا الْمَلٰٓئِكَةَ الَّذِيْنَ هُمْ

او هغه | په جګړه (بحث) کښے | غیر واضح وی | او مقرر ے کړے دوی | فرښتے | کوم چه دی

او په جګړه کښے صفا واضحه دلیل ویلے نهٔ شی (هغه دَ نارینه سړو برابر کیدے شی؟) او دوی فرښتے چه دَ الله تعالٰی بندګانے دی

عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ اِنَاثًا ۭ اَشَهِدُوْا خَلْقَهُمْ ۭ سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ

بندګانے | دَ رحمٰن | ښځے | آیا دوی حاضر وو | په وخت دَ پیدا ښت دَ دوی | وُبه لیکلے شی | دَ دوی ګواهی

زنانه ګڼړلے دی ـ نو آیا دوی ورته دَ پیدا ښت په وخت کښے موجود ولاړ وو؟ دَ دوی دا دعوے لیکلے شی

وَيُسْـَٔلُوْنَ ⑲ وَقَالُوْا لَوْ شَآءَ الرَّحْمٰنُ مَا عَبَدْنٰهُمْ ۭ

او له دوی نه به تپوس وکړے شی | او دوی وائی | که چرے غوښتلے | رحمٰن | نو مونږ به دَ دے (بتانو) عبادت نهٔ وو کړے

او تپوس به ترے نهٔ کیږی. او دوی وائی چه که خدائے غوښتلے نو مونږ به دَ دے (فرښتو) عبادت نهٔ کولو.

مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۚ إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿٢٠﴾ أَمْ

نشته دوی ته | دَ دِے خبرے | څۀ علم | نۀ دی دوی | مګر | فرضی خبرے جوړوی | آیا

دوی دَ حقیقت نه هیڅ خبر نۀ دی خو په اټکل باندِ روان دی آیا مونږ

آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا مِنْ قَبْلِهِ فَهُمْ بِهِ مُسْتَمْسِكُونَ ﴿٢١﴾ بَلْ قَالُوا

ورکړے دے مونږ دوی ته | کتاب | له دے نه وړاندِ | چه دوی | هغه | په مضبوطئ سره نیولے دے | (نه) بلکه | دوی وائی

دے خلقو ته دَ دِے نه وړاندِ څۀ کتاب ورکړے دے چه دوی دَ هغے سند پیش کوی؟ نه - بلکه دوی

إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَىٰ آثَارِهِمْ مُهْتَدُونَ ﴿٢٢﴾

بیشکه مونږ بیا موندل | پلاران خپل | په یو دین باندِ | او بیشکه مونږ | دَ دوی دَ قدمونو په نخښو | لار ه موندونکی یُو

وائی چه مونږ خپل پلار نیکۀ په یوه لاره روان موندلی وُو او اوس مونږ په هغوئی پسے روان یُو -

وَكَذٰلِكَ مَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِي قَرْيَةٍ مِنْ نَذِيرٍ إِلَّا قَالَ

او دغه شان | نۀ دے لیږلے مونږ | له تا نه وړاندِ | په هیڅ کلی کښے | څوک ویرونکے | مګر | وَوئیل

او دغه شان مونږ له تا نه وړاندِ په یو کلی کښے څوک ویرونکے نۀ دے لیږلے چه هغۀ ته دَ هغه ځائے

مُتْرَفُوهَا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَىٰ آثَارِهِمْ

دَ دِے خوشحاله خلقو | چه بیشکه مونږ بیا موندلی | پلاران خپل | په یو دین | او بیشکه مونږ | دَ دوی دَ قدمونو په نخښو باندِ

خوشحاله خلقو دا نۀ وی وئیلی چه مونږ خپل پلار نیکۀ هم په دِے یو طریقه باندِ موندلی وُو او (اوس) مونږ په هغوئی پسے پسے

مُقْتَدُونَ ﴿٢٣﴾ قَالَ أَوَلَوْ جِئْتُكُمْ بِأَهْدَىٰ مِمَّا وَجَدْتُمْ عَلَيْهِ

روان یُو | دۀ وَوئیل | آیا اګر که | ما راوړے وی تاسو ته | دَ دِے نه ښه لاره | چه موندلی دی تاسو په هغے باندِ

روان یُو - پیغمبر به ورته وَوئیل چه اګر که ما درته دَ هغے نه غوره لاره پیش کړے وی چه تاسو پرے خپل پلار نیکۀ

آبَاءَكُمْ ۚ قَالُوا إِنَّا بِمَا أُرْسِلْتُمْ بِهِ كَافِرُونَ ﴿٢٤﴾ فَانْتَقَمْنَا

پلاران خپل | دوی وَوئیل | بیشکه مونږ | په هغه څۀ | چه را لیږلے شوی یئ تاسو په هغے | انکار کوو | پس انتقام واخستو مونږ

موندلی وُو هغوئی به ورته وَوئیل چه (بیا هم) مونږ ستا دَ پیغام قبلولو نه انکاریان یُو - نو مونږ ترے نه بدله

مِنْهُمْ ۖ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿٢٥﴾ وَإِذْ قَالَ

له دوی نه | پس وُګوره | څنګه | شو | انجام | دَ دروغ ګڼړونکو | او هر کله چه | وَوئیل

واخستله ، نو ته وُګوره چه دَ دروغ ګڼړونکو انجام څۀ شو ؟ او څۀ وخت چه ابراهیم

إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ إِنَّنِي بَرَاءٌ مِمَّا تَعْبُدُونَ ﴿٢٦﴾ إِلَّا

ابراهیم | خپل پلار | او خپل قوم ته | بیشکه زۀ | بیزاره یم | له هغه څۀ نه | چه تاسو ئے عبادت کوئی | سیوا

خپل پلار ته او خپل قوم ته وَوئیل چه زۀ ستاسو دَ معبودانو نه بیزاره یم - سیوا دَ

الَّذِي فَطَرَنِي فَإِنَّهُ سَيَهْدِينِ ﴿٢٧﴾ وَجَعَلَهَا كَلِمَةً بَاقِيَةً

دَ هغه ذات نه | چه پیدا ئے کړم زۀ | نو بیشکه هم هغه به | ما ته لار ه ښائی | او کړله الله هغه | یو کلمه | باقی پاتے کیدُونکے

دَ هغه ذات نه چه زۀ ئے پیدا کړے یم بس هم هغه به ما ته سمه لاره ښائی ، او هغۀ دا (دَ توحید) خبره په خپل اولاد کښے باقی پاتے

فِيْ عَقِبِهٖ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۲۸﴾ بَلْ مَتَّعْتُ هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ

دَ دهٔ په اولاد کښې | شاید چه دوی | رجوع وُکړی | بلکه | ما فائده وُرسوله | دوی ته | او دَ دوی پلارانو ته

پرېښودهٔ دَ پاره دَ دې چه اُئندهٔ هم خلق (دَ شرک نه) پښتنه کړئی۔ سمه خبره داده چه ما دوی او دَ دوی پلارانو نیکونو ته ډیر ډیر

حَتّٰى جَآءَهُمُ الْحَقُّ وَرَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ ﴿۲۹﴾ وَلَمَّا جَآءَهُمُ

تر دې چه | راغې دوی ته | حق (دین) | او پیغمبر | ښکاره | او هر کله چه | راغې دوی ته

سامانونه ورکړی دی تر دې چه رښتینې (قرآن) او صفا وینا کوونکې پیغمبر ورته راغې۔ او څهٔ وخت چه ورته رښتینې (قرآن)

الْحَقُّ قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ وَّاِنَّا بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۰﴾ وَقَالُوْا لَوْلَا

حق | نو دوی وُوئیل | چه دا | جادو دې | او بیشکه مونږ | له دې نه | انکار کوونکی یُو | او دوی وائی | ولې نه

راغې ، نو دوی ووئیل چه دا خو جادو دې او مونږ خو دا نهٔ منو ۔ او دائې وُوئیل چه دا

نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ ﴿۳۱﴾

نازل کړې شو | دا | قرآن | په یو سړی بانډې | له دِې دوؤ کلو نه | چه لوئې وی۔

قرآن دَ دِې دواړو (لویو) کلو په چا لوئې سړی بانډې ولې را نازل نه شو؟

اَهُمْ يَقْسِمُوْنَ رَحْمَتَ رَبِّكَ ۭ نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُمْ مَّعِيْشَتَهُمْ

آیا دوی تقسیموی | رحمت | دَ رب ستا | مونږ تقسیم کړې ده | دَ دوی په مینځ کښې | دَ دوی روزی

آیا دوی ستا دَ رب رحمت تقسیمول غواړی ۔ هم مونږ دَ دوی روزی په دُنیا کښې دَ دوی

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ لِّيَتَّخِذَ

په ژوند دَ دنیا کښې | او اوچت کړی دی مونږ | ځنې دَ دوی | په ځنو بانډې | په مرتبو کښې | چه وُنیسی

په مینځ کښې تقسیم کړې ده ، او مونږ ځنو له په ځنو کسانو بانډې مرتبې او چتې کړی دی چه یو تن دَ بل

بَعْضُهُمْ بَعْضًا سُخْرِيًّا ۭ وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ﴿۳۲﴾

ځنې له دوی نه | ځنې | خدمت ګار | او رحمت | ستا دَ رب | غوره دې | له هغه څهٔ نه | چه جمع کوی ئې دوی

سړی نه کار واخلی ۔ او ستا دَ رب رحمت دَ هغې مال نه ډیر غوره دې کوم چه دا خلق راجمع کوی

وَلَوْلَآ اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً لَّجَعَلْنَا لِمَنْ

او که چرې نه وې (دا خبره) | چه شی به | خلق | یوه ډله | نو خامخا به جوړ کړی وو مونږ | دَ پاره دَ هغه چا

او که دا خبره نهٔ وې چه ټول خلق به په یوه طریقه شی ، نو مونږ به دَ رحمٰن

يَّكْفُرُ بِالرَّحْمٰنِ لِبُيُوْتِهِمْ سُقُفًا مِّنْ فِضَّةٍ وَّمَعَارِجَ عَلَيْهَا

چه انکار کوی | دَ رحمٰن | دَ دوی دَ کورونو | چتونه | دَ سپینو زرو | او پارسنګونه (هم) | چه په هغې

(خدائې) منکرانو له دَ کورو چتونه دَ سپینو زرو جوړ کړی وو ، او پوړئې چه په هغې به

يَظْهَرُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَلِبُيُوْتِهِمْ اَبْوَابًا وَّسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِـُٔوْنَ ﴿۳۴﴾ وَزُخْرُفًا ۭ

دوی پاس خیژی | او دَ دوی دَ کورونو | دروازې | او تختونه (هم) | چه په هغې | دوی ډډې لګوی | او دَ سرو زرو هم

درختل۔ او دَ هغوی دَ کورونو دروازې او تختونه چه په هغې به ئې ډډې وهلې او دَ سرو زرو نه هم۔

وَإِنْ كُلُّ ذٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَالْاٰخِرَةُ عِنْدَ رَبِّكَ

او نهٔ دے دا ټول | مګر لږ سامان | د ژوند د دُنیا دے | او آخرت (خو) | ستا د رب په نزد

او دا ټول څیزونه هیڅ هم نهٔ دی ، دا خو د څو ورځو کامیابی ده او آخرت ستا د رب په نزد پرهیزګارو د پاره

لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿٣٥﴾ وَمَنْ يَّعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ نُقَيِّضْ

پرهیزګارو د پاره دے | او څوک چه | غافل شي | د رحمان د ذکر نه | مونږ مقرر ؤ

دے۔ او څوک چه د رحمٰن د ذکر نه غفلت اختیار کړی نو مونږ د هٔ د پاره

لَهٗ شَيْطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ ﴿٣٦﴾ وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّوْنَهُمْ

هٔ د پاره | یو شیطان | نو هغه | د دهٔ | ملګرے (شي) | او بیشکه شیطانان | منع کوی دوی

یو شیطان مقرر کړو پس هغه هر وخت د هغهٔ سره وی او بیشکه هغوی ئے د سمے لارے

عَنِ السَّبِيْلِ وَيَحْسَبُوْنَ أَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿٣٧﴾ حَتّٰى إِذَا جَآءَنَا

د لارے نه | او دوی ګمان کوی | چه دوی | سمه لار موندونکی دی | تر دے چه | هر کله دے راشي مونږ ته

نه منع کوی او دوی خیال کوی چه (ګني) په سمه لاره روان دی۔ تر دے چه داسے سړے مونږ ته راورسی نو

قَالَ يٰلَيْتَ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ

نو وائی به | اے کاش! | چه په مینځ زما کښے | او په مینځ ستا کښے | لرے والے د مشرق او د مغرب وے | پس بد

(دے شیطان ته) به وائی چه اے کاش! زما او ستا تر مینځه د مشرق او د مغرب فاصله وے ته څومره خراب

الْقَرِيْنُ ﴿٣٨﴾ وَلَنْ يَّنْفَعَكُمُ الْيَوْمَ إِذْ ظَّلَمْتُمْ أَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ

ملګرے یئے تهٔ | او هیڅ کله به فائده درنه کړی تاسو ته | نن | هر کله چه ظلم کړے دے تاسو | چه تاسو | په عذاب کښے

ملګرے یئے۔ او نن به درته دا خبره هیڅ فائده درنه کړی ځکه چه کفر مو کړے دے نن به ټول په عذاب

مُشْتَرِكُوْنَ ﴿٣٩﴾ أَفَأَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ أَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ وَمَنْ كَانَ

ټول شریک یئ | نو آیا تهٔ | آوروے شے | کڼرو ته | یا تهٔ ښودلے شے لاره | ړندو ته | او هغه چاته چه | دی

کښے شریک یئ۔ نو آیا کڼرو ته خپل آواز اوروے شے؟ یا ړندو ته لار ښودلے شے او هغه چاته چه په

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿٤٠﴾ فَإِمَّا نَذْهَبَنَّ بِكَ فَإِنَّا مِنْهُمْ مُّنْتَقِمُوْنَ ﴿٤١﴾

په ښکاره ګمراهئ کښے | بیا که چیرے مونږ بوځو | تا (د دُنیا نه) | نو بیشکه مونږ | له دوی نه | انتقام اخستونکی یو

ښکاره ګمراهئ کښے پراتهٔ دی۔ نو که مونږ تا د دے دنیا نه اُوچت کړو نو بیا هم د دے کافرو نه خو به بدله اخلو او یا که تا ته

أَوْ نُرِيَنَّكَ الَّذِيْ وَعَدْنٰهُمْ فَإِنَّا عَلَيْهِمْ مُّقْتَدِرُوْنَ ﴿٤٢﴾

یا مونږ تا ته وښایو | هغه (عذاب) | چه وعده ئے کړے ده مونږ د دوی سره | نو بیشکه مونږ | په دوی باندِ | قدرت لرونکی یو

هغه عذاب وښایو د کوم چه مو د دوی سره وعده کړے ده نو مونږ په دوی باندِ هر څنګه پوره قدرت لرو۔

فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِيْٓ أُوْحِيَ إِلَيْكَ ۚ إِنَّكَ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٤٣﴾

پس منګولے ولګوه | په هغه څه چه | وحی ئے کولے شي | ستا طرف ته | بیشکه تهٔ | په سمه لاره یئے۔

نو تهٔ په دے قرآن باندِ قائم او سیږه چه تا ته رالیږلے شوے دے ، بیشکه تهٔ په سمه لاره باندِ قائم یئے۔

وَاِنَّهٗ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ ۚ وَسَوْفَ تُسْـَٔلُوْنَ ﴿۴۴﴾ وَسْـَٔلْ

او بیشکه دا | یو نصیحت دے تا دَ پاره | او ستا دَ قوم دَ پاره | او ډیر زر به | له تاسو نه تپوس وکړے شی | او تپوس وکړه

او بیشکه دا (قرآن) تا دَ پاره او ستا قوم دَ پاره ډیر ښهٔ نصیحت دے او ډیر زر به تاسو نه تپوس کیږی. او ته دَ هغې

مَنْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَآ اَجَعَلْنَا مِنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ

له هغه چا نه چه لیږلی دی مونږ | له تانه وړاندې | له خپلو پیغمبرانو نه | آیا مونږ جوړ کړو | سیوا | دَ رحمٰن نه

پیغمبرانو نه تپوس وکړه چه مونږ له تانه وړاندې رالیږلی دی چه آیا مونږ دَ رحمٰن نه سیوا نور معبودان

اٰلِهَةً يُّعْبَدُوْنَ ﴿۴۵﴾ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ اِلٰى فِرْعَوْنَ

څوک معبودان | چه عبادت ئے کیدے شی | او بیشکه | مونږ رالیږلے وو | موسیٰ | دَ خپلو نخښو سره | فرعون نه

ټولی دی چه دَ هغوئی عبادت دِ کولے شی. او مونږ (له تانه وړاندې) موسیٰ له خپلے نخښے ورکړے او فرعون او دَ هغهٔ سردارانو

وَمَلَا۟ئِهٖ فَقَالَ اِنِّىْ رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۶﴾ فَلَمَّا

او دَ دهٔ دَ سردارانو طرفته | نو دهٔ ووئیل | بیشکه زهٔ | پیغمبر | دَ پروردګار | دَ عالمونو یم | بیا هر کله چه

ته مو رولیږلو نو هغهٔ ورته ووئیل چه زهٔ دَ رب العلمین رسول یم. بیا چه موسیٰ ورته

جَآءَهُمْ بِاٰيٰتِنَآ اِذَا هُمْ مِّنْهَا يَضْحَكُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَمَا نُرِيْهِمْ

هغه راغے دوئی ته | زمونږ دَ نخښو سره | نو ناګهانه دوی دَ دغه نخښو پورے | خندا ګانے کولے | او نهٔ بنودله مونږ دوئی ته

زمونږ ورکړے نخښے پیش کړے نو هغوئی ورپورے خندا ګانے شروع کړے. او مونږ چه به ورته کومه

مِّنْ اٰيَةٍ اِلَّا هِىَ اَكْبَرُ مِنْ اُخْتِهَا ۡ وَاَخَذْنٰهُمْ بِالْعَذَابِ

هیڅ نخښه | مګر هغه (به وه) | لویه | له ورومبئ نخښے نه | او ونیول مونږ دوی | په عذاب سره

نخښه بنودله نو هغه به دَ بلے نه غټه وه ، او مونږ دغه خلق په عذاب کښے راونیول

لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۴۸﴾ وَقَالُوْا يٰۤاَيُّهَ السّٰحِرُ ادْعُ لَنَا رَبَّكَ

شاید چه دوی | رجوع وکړی | او دوی او وئیل | اے جادوګره ! | دُعا وکړه | مونږ دَ پاره | دَ خپل رب نه

چه هغوئی (دَ خپلو حرکتونو نه) منع شی. او هغوئی ووئیل چه اے جادوګره ! ته مونږ دَ پاره خپل رب نه دُعا وکړه

بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ ۚ اِنَّنَا لَمُهْتَدُوْنَ ﴿۴۹﴾ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ

چه دَ دهٔ وعده کړے ده | تاسره | بیشکه مونږ خو | لاره موندونکی یو | بیا هر کله چه | لرے به کړو مونږ | له دوی نه

دَ کومے خبرے چه هغهٔ تاسره وعده کړے ده نو مونږ به ضرور سمے لارے ته راواوړو ، نو بیا چه مونږ ترے نه عذاب

الْعَذَابَ اِذَا هُمْ يَنْكُثُوْنَ ﴿۵۰﴾ وَنَادٰى فِرْعَوْنُ فِىْ قَوْمِهٖ

عذاب | نو ناګهانه به | دوی | وعده ماتوله | او آواز وکړو | فرعون | په خپل قوم کښے

لرے کړو نو هغوئی (په هغه ساعت) خپل لوظ مات کړو او فرعون په خپل قوم کښے اعلان وکړو

قَالَ يٰقَوْمِ اَلَيْسَ لِىْ مُلْكُ مِصْرَ وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ تَجْرِىْ

دَ ئے وئیل | اے زما قومه ! | آیا نهٔ دے | ما دَ پاره | حکومت دَ مصر | او دا | نهرونه | چه بهیږی

(او) داسے ووئیل چه اے زما قومه ! آیا دَ مصر سلطنت زما نهٔ دے ؟ او دا ټول نهرونه چه زما دَ بنیږو

مِنْ تَحْتِيْ ۚ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ۝۵۱ اَمْ اَنَا خَيْرٌ مِّنْ هٰذَا الَّذِيْ هُوَ

ما لاندې | پس ایا تاسو نهٔ کورئ؟ | بلکه زهٔ | ډیر ښهٔ یم | له هغه سړی نه | چه دے

لاندې نهٔ بهیږی؟ نو ایا تاسو دا نهٔ وینئ؟ بلکهٔ زهٔ دَدِے سړی (یعنی موسیٰؑ) نه ډیر غوره یم چه دَ دهٔ هیڅ

مَهِيْنٌ ۙ وَّلَا يَكَادُ يُبِيْنُ ۝۵۲ فَلَوْلَآ اُلْقِيَ عَلَيْهِ اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ

بې قدره | او هغه واضحه خبره هم نهٔ شی کولے | نو ولے وُنهٔ | غورزولے شول | په دهٔ باندې | باهوګان | دَ سرو زرو

رتبه نشته - او چه سمے واضحه خبرے هم نهٔ شی کولے؟ نو دهٔ ته دَ سرو زرو باهوګان ولے اچولے شوی نهٔ دی

اَوْ جَآءَ مَعَهُ الْمَلٰٓئِكَةُ مُقْتَرِنِيْنَ ۝۵۳ فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ

یا راشی | دَ دهٔ سره | فرښتے | جمع کړے شوے | پس دهٔ بے وقوف جوړ کړو | خپل قوم

فرښتے ورسره ولے قطار قطار راغلے نهٔ دی؟ دغه شان دهٔ خپل قوم بے وقوفه جوړ کړو

فَاَطَاعُوْهُ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ۝۵۴ فَلَمَّآ اٰسَفُوْنَا

نو دوئ دَ دهٔ اطاعت وکړو | بیشکه دوئ | وُو | خلق نافرمانه | بیا هر کله چه | دوئ مونږ غصه کړو

او دَ هغهٔ په خبرو کښے راغلل - بیشکه هغوئ نافرمانه خلق وو - بیا هر کله چه هغوئ مونږ ناراضه کړلو

انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝۵۵ فَجَعَلْنٰهُمْ سَلَفًا وَّمَثَلًا

نو بدله واخسته مونږ | له دوئ نه | بیا غرق کړل مونږ دوئ | ټول | بیا جوړ کړل مونږ دوئ | پیشوایان | او نمونه

نو مونږ دَ هغوئ نه انتقام واخستو بیا مونږ هغوئ ټول غرق کړل - نو دَ نورو (راتلونکو) خلقو دَ پاره مشران او (دَ عبرت)

لِّلْاٰخِرِيْنَ ۝۵۶ وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا اِذَا قَوْمُكَ

دَ روستنو خلقو دَ پاره | او | هر کله چه | بیان کړے شو | دَ ځوئے دَ مریم | مثال | نو ناګهانه قوم ستا

نمونه مو کړل او څهٔ وخت چه دَ بی بی مریمؑ دَ ځوئے مضمون واوُرولے شو نو څهٔ ګورو چه ستا قوم په دے باندې

مِنْهُ يَصِدُّوْنَ ۝۵۷ وَقَالُوْٓا ءَاٰلِهَتُنَا خَيْرٌ اَمْ هُوَ ۭ مَا ضَرَبُوْهُ

دے پورے | (په خوشحالئ) چغے وهی | او دوئ ووئیل | آیا معبودان زمونږ | ښهٔ دی | یا عیسیٰؑ؟ | بیان نهٔ کړو دوئ دا مثال

(خوشحالئ نه) چغے وهل شروع کړل - او وے وئیل چه آیا زمونږ معبودان غوره دی یا هغه (یعنی عیسیٰؑ)؟ دوئ دا خبره محض

لَكَ اِلَّا جَدَلًا ۭ بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُوْنَ ۝۵۸ اِنْ هُوَ اِلَّا عَبْدٌ

تاته | مګر په طریقه دَ جګړے | بلکه | دوئ | خلق دی | جګړه مار | نهٔ دے دے (عیسیٰؑ) | مګر بنده دے

دَ جګړے په غرض کړے ده بلکه دا خلق هسے هم جګړه مار دی - عیسیٰؑ خو (معبود نهٔ وو) زمونږ یو (نیک) بنده

اَنْعَمْنَا عَلَيْهِ وَجَعَلْنٰهُ مَثَلًا لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۝۵۹ وَلَوْ نَشَآءُ

چه انعام کړے دے مونږ | په دهٔ | او جوړ کړو مونږ دے | یو مثال | بنی اسرائیلو دَ پاره | او که چرے | مونږ غوښتے

وو چه مونږ پرے فضل کړے او هغه مو دَ بنی اسرائیلو دَ پاره (دَ خپل قدرت) نمونه جوړه کړے وه او که چرے مونږ غوښتے

لَجَعَلْنَا مِنْكُمْ مَّلٰٓئِكَةً فِي الْاَرْضِ يَخْلُفُوْنَ ۝۶۰ وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ

نو پیدا کړے به وے مونږ | له تاسو نه | فرښتے | چه په زمکه کښے به | دوی خلیفه وے | او بیشکه دے | یوه نخښه ده

نو تاسو نه به مو فرښتے راپیدا کړے وے چه په زمکه باندې به یو بل پسے اوسیدلے - او عیسیٰؑ په قیامت باندې دَ یقین راوستلو

لِلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُونِ ۚ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿٦١﴾

دَ قیامت | پس تهٔ شک مهٔ کوه | دَ دې په رانلو کښې | او زما پیروي کوه | هم دا ده | لار | سمه

ذریعه ده لو تاسو په دې حقله شک مهٔ کوئ او په ما پسې روان شئ ، دا سمه نیغه لار ده ـ

وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ ۚ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴿٦٢﴾ وَلَمَّا جَاءَ عِيسٰى

او منع دې نهٔ کړي تاسو | شیطان | بیشکه دے | ستاسو | دُښمن دے | ښکاره | او هر کله چه | راغے | عیسیٰ

او شیطان دې تاسو (په حقه لاره تلونه) هیڅ کله منع نهٔ کړي بیشکه هغه ستاسو ښکاره دُښمن دے. او څهٔ وخت چه عیسیٰ ښکاره

بِالْبَيِّنٰتِ قَالَ قَدْ جِئْتُكُم بِالْحِكْمَةِ وَلِأُبَيِّنَ لَكُم بَعْضَ

دَ معجزو سره | نو دهٔ ووئیل | چه ما راوړے دے تاسو ته | حکمت | او چه واضحه کړم | تاسو باندې | څنے

نخښې راوړې نو خلقو ته ئې ووئیل چه تاسو له م دَ حکمت خبرې راوړې دی او څکه (راغلے یم) چه تاسو ته څنے خبرے صفا

الَّذِي تَخْتَلِفُونَ فِيهِ ۖ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَطِيعُونِ ﴿٦٣﴾ إِنَّ اللّٰهَ هُوَ

هغه (خبرے) | چه تاسو اختلاف کولو | په هغے کښے | پس وُویریږئ | دَ الله نه | او ومنئ زما حکم | بیشکه | هم الله

کړم چه تاسو په کښے اختلاف کوئ نو دَ الله نه وویریږئ او زما خبرے ومنئ ـ بیشکه الله زما هم

رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۚ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿٦٤﴾ فَاخْتَلَفَ

زما رب | او ستاسو رب دے | پس عبادت کوئ دَ دهٔ | هم دا ده | لار | سمه | پس اختلاف وکړو

رب دے او ستاسو هم رب دے نو بوازے دَ هغهٔ عبادت کوئ هم دا سمه نیغه لار ده ـ نو بیا (په دې پسے هم)

الْأَحْزَابُ مِن بَيْنِهِمْ ۖ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْ عَذَابِ

ډیرو جماعتونو | په خپل مینځ کښے | پس تباهي ده | هغو خلقو دَپاره | چه ظلم ئے وکړو | له عذاب نه

مختلفو ډلو په خپل مینځ کښے اختلاف پیدا کړو ـ نو ظالمانو خلقو له دَ دردناکے ورځے دَ عذاب دَ لاسه (غټه) تباهي

يَوْمٍ أَلِيمٍ ﴿٦٥﴾ هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا السَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً

دَ ورځے | دردناکے | دوئ انتظار نهٔ کوی | مګر صرف دَ قیامت | چه را به شي دوئ ته | ناګهانه

پرته ده ـ دا خلق بس دَ قیامت دَ ورځے انتظار کوی چه ناګهانه ورته راشي

وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٦٦﴾ الْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ

او دوئ به | خبر نهٔ وی | ټول دوستان به | په دغه ورځ | دَ یو بل

او دوئ پرے خبر هم نهٔ وی ټول دوستان به په دغه ورځ دَ یو بل دښمنان

عَدُوٌّ إِلَّا الْمُتَّقِينَ ﴿٦٧﴾ يٰعِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ

دښمنان وی | سیوا | دَ پرهیزګارو نه | اے زما بندګانو! | نن | څهٔ ویره | په تاسو باندې

شي سیوا دَ پرهیزګارو خلقو نه ـ اے زما بندګانو ! نن ورځ په تاسو هیڅ ویره

الْيَوْمَ وَلَا أَنتُمْ تَحْزَنُونَ ﴿٦٨﴾ الَّذِينَ آمَنُوا بِآيٰتِنَا وَكَانُوا

نن ورځ | او نهٔ به | تاسو | غمژن شئ | کومو خلقو | چه ایمان راوړو | زمونږ په آیتونو | او دوی ده

نشته او نهٔ به دربانډې څهٔ غم راځي ـ دا هغه کسان دی چه زمونږ په آیتونو باندې ایمان راوړے وو او زمونږ

ع ۱۱

مُسْلِمِيْنَ ﴿٦٩﴾ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ اَنْتُمْ وَاَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُوْنَ ﴿٧٠﴾

مسلمانان | داخل شئ | جنت ته | تاسو | او ستاسو ښځې | چه عزت به درکولے شي.

فرمان ئې منلے وو تاسو هم او ستاسو بیبیانے هم جنت ته خوشحاله ورننوزئ -

يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ مِّنْ ذَهَبٍ وَّاَكْوَابٍ ۚ وَفِيْهَا مَا

گرځولے به شي | په دوی باندِ | رکیبئ | دَ سرو زرو | او ګلاسونه (هم) | او په هغے کښے به وی هغه څه

په هغے کښے به دَ سرو زرو دَ رکیبو او ګلاسونو دور چلیږی او هغه ټول څیزونه به

تَشْتَهِيْهِ الْاَنْفُسُ وَتَلَذُّ الْاَعْيُنُ ۚ وَاَنْتُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٧١﴾ ۚ

چه غواړی ئے | نفسونه | او چه ښه لګی | په سترګو | او تاسو به | په دے کښے | همیشه یئ.

ورکیدے چه څه ئے زړه غواړی او سترګے پرے خوشحالیږی او تاسو به پکښے تل تر تله وُسیږئ.

وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِيْٓ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٧٢﴾

او هم دا دے | هغه جنّت | دَ کوم چه | تاسو وارثان جوړ کړے شوئ | په بدله (دَ هغه عملونو) | چه تاسو به کول.

او دا هغه جنت دے چه تاسو دَ خپل عمل په سبب دَ هغے مالکان کړے شوئ

لَكُمْ فِيْهَا فَاكِهَةٌ كَثِيْرَةٌ مِّنْهَا تَاْكُلُوْنَ ﴿٧٣﴾ اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ

تاسو دَ پاره | په دِے کښے | میوے دی | ډیرے | چه له دے نه به | تاسو خورئ | بیشکه | ګناهګاران به

په دِے کښے تاسو دَ پاره ډیر قسمه میوے دی چه خوراکونه به ترے نه کوئ نافرمانه خلق به همیشه په

فِيْ عَذَابِ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ ﴿٧٤﴾ ۖ لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيْهِ

په عذاب کښے | دَ دوزخ | همیشه وی | نه به شی سپکولے | له دوی نه | او دوی به | په هغے کښے

دوزخ کښے پرانهٔ وی - عذاب به ترے نه سپکولے نهٔ شی او مایوسه به پکښے

مُبْلِسُوْنَ ﴿٧٥﴾ ۚ وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْا هُمُ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٧٦﴾

مایوسه پرانهٔ وی | او مونږ په دوی ظلم ونهٔ کړو | او لیکن | دوی وو | ظالمان

پرانهٔ وی او مونږ پرے هیڅ ظلم نهٔ دے کړے خو دوئ پخپله (دَ ځان دَ پاره) ظالمان وو

وَنَادَوْا يٰمٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ ۖ قَالَ اِنَّكُمْ مّٰكِثُوْنَ ﴿٧٧﴾

او آواز به وکړی | اے مالک (نوم فرښتے!) | کار دِ تمام کړی | زمونږ | ستا ربّ | دَے به ووائی | بیشکه تاسو | همیشه اُوسیدونکی یئ

او دوئ به آواز وکړی چه اے مالکه! ستا رب دِ زمونږ دَ ژوند کار خلاص کړی هغه به ووائی تاسو به همیشه دلته پرانهٔ یئ.

لَقَدْ جِئْنٰكُمْ بِالْحَقِّ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ ﴿٧٨﴾ اَمْ اَبْرَمُوْٓا

مونږ راوړے دے تاسو ته | حق دین | او لیکن | اکثرو به له تاسو نه | دَ حق نه | نفرت کولو | آیا دوئ کلک قصد کړے دے

مونږ تاسو ته رښتینے دین راوړے سولو خو په تاسو کښے اکثر خلق دَ حق دین نه بیزاره شول آیا دوئ خپل (ځان له)

اَمْرًا فَاِنَّا مُبْرِمُوْنَ ﴿٧٩﴾ ۚ اَمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ

دَ یو کار | پس بیشکه مونږ هم | کلک قصد کوونکی یو | آیا دوئ خیال کوی | بیشکه مونږ | نهٔ آورو | راز دَ دوی

بند و بست کړے دے؟ نو مونږ ورته هم خپل انتظام دَرست ساتلے دے آیا دَ دوئ دا خیال دے چه مونږ دَ دوئ پټے او دَ سرګوشئ خبرے

وَنَجْوٰىهُمْ ؕ بَلٰى وَرُسُلُنَا لَدَيْهِمْ يَكْتُبُوْنَ ﴿۸۰﴾ قُلْ اِنْ كَانَ

اوډ دوی مشوره | ولے نه | اوزمونږ لیږلے شوی (فرښتي) | دوی سره | لیکی | وُوایه | کهٔ چرے وی

نهٔ اوُرو ؟ ولے نه ! حالانکه زمونږ لیږلے (فرښتي) دوئ سره دی چه لیکل کوی (اے نبیؐ !) ووایه کهٔ چرے دَ رحمان

لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ ۖ فَاَنَا اَوَّلُ الْعٰبِدِيْنَ ﴿۸۱﴾ سُبْحٰنَ رَبِّ السَّمٰوٰتِ

دَ رحمٰن | څهٔ اولاد | پس زهٔ به | دَ ټولو نه وړومبے | (دَ دهٔ) عبادت کوونکے وُم | پاک دے | ربّ | دَ آسمانونو

(خدائے) اولاد وے نو دَ ټولو نه وړاندې ما به دَ هغهٔ عبادت کولو ، پاک دے دَ آسمانونو او دَ زمکے

وَالْاَرْضِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿۸۲﴾ فَذَرْهُمْ يَخُوْضُوْا

او دَ زمکے | مالک | دَ عرش | له هغه څهٔ نه | چه دوی ئے بیانوی | پس پریږده دوی | چه مشغول وی

ربّ دَ عرش مالک دَ هغه ټولو خبرو نه چه دوی ئے بیانوی ، نو دوئ په خپلو شغلونو او په لوبو کښے پرانه

وَيَلْعَبُوْا حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ ﴿۸۳﴾ وَهُوَ الَّذِيْ

او لوبے کوی | تردے چه | وګوری | دوی هغه ورځ دَ کومے چه | دوی سره وعده کولے شی | او دے | هغه ذات دے چه

پریږده تردے چه هغه ورځ راشی دَ کومے چه دوئ سره وعده شوے ده ۔ او الله هغه ذات دے چه

فِي السَّمَآءِ اِلٰهٌ وَّفِي الْاَرْضِ اِلٰهٌ ؕ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْعَلِيْمُ ﴿۸۴﴾

په آسمان کښے (هم) | معبود دے | او په زمکه کښے (هم) | معبود دے | او هم دے دے | حکمت والا | علم والا

په آسمان کښے هم معبود دے او دَ زمکے په مخ هم معبود دے او دے دَ حکمتونو خاوند دے په هرڅهٔ پوهه دے

وَتَبٰرَكَ الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۚ

او ډیر بابرکت دے | هغه ذات چه | دَ دهٔ ده | بادشاهي | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او دَ هغه څهٔ چه | دَ دے دواړو په مینځ کښے دی

او الله ډیر بابرکته ذات دے چه دَ آسمانونو او دَ زمکے او دَ دواړو ترمینځه دَ څیزونو بادشاه دے ،

وَعِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۵﴾ وَلَا يَمْلِكُ الَّذِيْنَ

او هم دهٔ سره دے | علم | دَ قیامت | او هم دَ دهٔ طرف ته | به تاسو واپس کرځئ | او اختیار نهٔ لری | هغه کسان چه

او دهٔ ته (دَ) قیامت (وخت) معلوم دے او تاسو ټول به ورته پسته ورځئ ۔ او دوئ چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا

يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الشَّفَاعَةَ اِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ

دوئ ئے عبادت کوی | سیوا له دهٔ نه | دَ سفارش | مګر | هغه څوک | چه ګواهي ئے ورکړی وی | دَ حق | او دوی

دَ کومو معبودانو عبادت کوی هغوئ ته دَ سفارش کولو هیڅ اختیار نشته خو هغه ! چا چه دَ حقے خبرے اقرار کړے وی او په هغے

يَعْلَمُوْنَ ﴿۸۶﴾ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَهُمْ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ

پوهیږی | او کهٔ چرے | ته تپوس وکړے له دوئ نه | چه چا | پیدا کړل دوئ | نو ضرور به وائی دوئ | الله

یقین لرلے وی ۔ (نو هغوئ به شفاعت کولے شی) او کهٔ ته دَ دوئ نه تپوس وُکړے چه تاسو چا پیدا کړی یئ ؟ نو ضرور به وائی چه الله (پیدا کړی

فَاَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿۸۷﴾ وَقِيْلِهٖ يٰرَبِّ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۸۸﴾

نو بیا کوم خوا | دوئ اړولی روان دی | او قسم دَ دے وینا | چه اے زما ربه ! | چه بیشکه دا دا سے | خلق دی | چه ایمان نهٔ راوړی

یُو) نو بیا کوم خوا دوئ اړولی روان دی او الله ته (دَ رسولؐ) دا وینا هم معلومه ده چه اے ربه ! دا دا سے خلق دی چه په هیڅ وجه ایمان نهٔ راوړی

وقف لازم

فَاصْفَحْ عَنْهُمْ وَقُلْ سَلٰمٌ ؕ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿٨٩﴾ ع

پس مخ واړوه | له دوی نه | او ووایه | سلام دے | پس زر به | دوی پوهه شي

نو (لے نبیؐ!) ته د دوی نه مخ واړوه او ورته ووایه چه زهٔ درته سلام کوم نو زر دے چه حقیقت به ورته معلوم شي۔

سُوْرَةُ الدُّخَانِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ تِسْعٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّخَمْسُوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورهٔ دخان په مکه کښے نازل شوے دے | شروع کوم په نوم د الله چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښے ۵۹ ایتونه او درے ۳ رکوع دی

د الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

حٰمٓ ﴿١﴾ۚ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿٢﴾ۙ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ

حٰمٓ | قسم دے په کتاب | واضحه | بیشکه مونږ | نازل کړو دا | په شپه | مبارکه کښے

حٰمٓ ۔ په دے واضحه کتاب باندِ قسم دے۔ مونږ دا کتاب په یوه برکتي شپه کښے راکوز کړے دے۔

اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِيْنَ ﴿٣﴾ فِيْهَا يُفْرَقُ كُلُّ اَمْرٍ حَكِيْمٍ ﴿٤﴾ۙ اَمْرًا

بیشکه مونږ یو | ویروُنکی | په دے کښے | فیصله کولے شي | د هر | کار | حکمت والا | په وحی کولو سره

بیشکه مونږ (له عذابه) ویروُنکي یو۔ په دِے شپه کښے هره د حکمت معامله زمونږ په حکم سره فیصله کیږی. (او دا) حکمونه زمونږ

مِّنْ عِنْدِنَا ؕ اِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ ﴿٥﴾ۚ رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ؕ اِنَّهٗ هُوَ

له طرفه خپل نه | بیشکه مونږ یو | رالیږونکی | په سبب د رحمت | ستا د ربّ | بیشکه هم دے

د بارګاه نه جاری کیږی ولے چه هم مونږ رالیږونکي یو۔ دا ستا د ربّ مهربانی ده بیشکه هغه هر څهٔ

السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿٦﴾ۙ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۘ اِنْ كُنْتُمْ

آوریدونکے | پوهه دے | رب دے | د آسمانونو | او د زمکے | او څه چه | د دِے دواړو په مینځ کښے دی | که چرے یئ تاسو

آوری په هر څهٔ پوهه دے، د آسمانونو او د زمکے او د دِے ترمینځهٔ د څیزونو ربّ دے که تاسو پرے

مُّوْقِنِيْنَ ﴿٧﴾ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ؕ رَبُّكُمْ وَرَبُّ

یقین کوونکی | نشته هیڅ معبود | سیوا د دهٔ نه | چه ژوندی کوی | او مړهٔ کوی | رب دے ستاسو | او ربّ دے

یقین راوستل غواړئ د هغهٔ نه سیوا هیڅوک د عبادت لائق نشته هم دے ژوندی کوی او مرګ راولی، ستاسو او ستاسو د پلارانو

اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٨﴾ بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ يَّلْعَبُوْنَ ﴿٩﴾ فَارْتَقِبْ يَوْمَ

ستاسو د پلارانو | مخوانو | بلکه | دوی | په شک کښے دی | لوبے کوی | نو ته انتظار کوه | د هغے ورځے

نیکونو ټولو ربّ دے۔ لیکن دا خلق خو په شک کښے پراته دی په لوبو کښے اخته دی. نو د هغے ورځے انتظار

تَاْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ ﴿١٠﴾ۙ يَّغْشَى النَّاسَ ؕ هٰذَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿١١﴾

چه رابه وړی | آسمان | لوګے | ښکاره | چه پټ به کړی | خلق | هم دا دے | عذاب | دردناک

کوه چه د آسمان د غاړے نه یو څرګند لوګے ښکاره شي۔ چه په خلقو به راخور شي، دغه به ډیر دردناک عذاب وی

رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ اِنَّا مُؤْمِنُوْنَ ﴿١٢﴾ اَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى

اے زمونږه ربه! | لرے کړه له مونږ نه | دا عذاب | بیشکه مونږ | ایمان راوړے دے | کوم ځائے به وی | دوی د پاره | نصیحت

اے زمونږ ربه! زمونږ نه دا عذاب لرے کړه، مونږ به ایمان راوړو۔ دوی کله نصیحت قبلوی؟

ركوع ۴ ۲۲ ۱۳ — مع ۱۲ — وقف لازم

وَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُولٌ مُّبِينٌ ﴿١٣﴾ ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلَّمٌ

حال دا دے چه راغلے وو دوی ته | یو رسول | ښکاره | بیا دوی مخ واړولو | له هغه نه | او وے وئیل | دا ته ښودنه شوے دے

حال خو دا دے چه واضحه بیان کوونکے پیغمبر ورته راغلے دے. نو دوی ترے نه مخ وګرځولو او داسے وو وئیل چه دا خو ته زده کړه شوے

مَّجْنُونٌ ﴿١٤﴾ إِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيلًا ۚ إِنَّكُمْ عَائِدُونَ ﴿١٥﴾

لیونے دے | بیشکه مونږ | لرے کوونکی یو | د عذاب | لږ ساعت | بیشکه تاسو | بیا راګرځیدونکی یئ

لیونے دے - مونږ به دا عذاب څه لږ ه موده له لرے کړو ، خو تاسو به خپل زوړ حالت ته ورګرځئ

يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰ إِنَّا مُنتَقِمُونَ ﴿١٦﴾ وَلَقَدْ فَتَنَّا

په کومه ورځ چه | نیول به وکړو مونږ | نیول | ډیر سخت | بیشکه مونږ | انتقام اخستونکی یو | او بیشکه امتحان کړے وو مونږ

په کومه ورځ چه به مونږ ډیر سخت نیول کوو مونږ به خامخا بدله اخلو او مونږ د دوی نه

قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَجَاءَهُمْ رَسُولٌ كَرِيمٌ ﴿١٧﴾ أَنْ أَدُّوا

له دوی نه وړاندې | د قوم | د فرعون | او راغے دوی ته | پیغمبر | عزتمند | چه | حواله کړئ

وړومبے د فرعون قوم آزمائیلے وو او هغوئی ته یو عزتمند پیغمبر ورغلے وو - چه د خدائے

إِلَيَّ عِبَادَ اللَّهِ ۖ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٨﴾ وَأَن لَّا تَعْلُوا

ما ته | بندګان د الله | بیشکه زهٔ | تاسو د پاره | یو رسول یم | امانتدار | او دا چه | تاسو سرکشی مهٔ کوئ

بندګان ما ته حواله کړه ، زهٔ تاسو ته رالیږلے شوے امانت دار پیغمبر یم - او دا چه تاسو د الله تعالیٰ په مقابله

عَلَى اللَّهِ ۖ إِنِّي آتِيكُم بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿١٩﴾ وَإِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي

د الله خلاف | بیشکه زهٔ راغلے یم تاسو ته | په دلیل | ښکاره سره | او بیشکه زهٔ | پناه غواړم | د رب خپل

کښے سرکشی مهٔ کوئ ، زهٔ تاسو ته یو څرګند دلیل پیش کوم ، او بیشکه زهٔ ستاسو او د خپل رب پناه

وَرَبِّكُمْ أَن تَرْجُمُونِ ﴿٢٠﴾ وَإِن لَّمْ تُؤْمِنُوا لِي فَاعْتَزِلُونِ ﴿٢١﴾

او د رب ستاسو | (له دے نه) چه تاسو سنګسار کړئ ما | او که چرے | تاسو ایمان نهٔ راوړئ | زما (په خبره) | نو له ما نه جدا شئ

غواړم له دے خبرے نه چه تاسو ما سنګسار کړئ او که چرے تاسو په ما ایمان نهٔ راوړئ نو زما نه بیرته په ډډه شئ

فَدَعَا رَبَّهُ أَنَّ هَٰؤُلَاءِ قَوْمٌ مُّجْرِمُونَ ﴿٢٢﴾ فَأَسْرِ بِعِبَادِي

نو دهٔ دعا وکړه | خپل رب ته | چه دا خلق | مجرمان دی | پس بوځه | بندګان زما

بیا موسیٰؑ خپل رب ته دعا وکړه چه دا خو ډیر غټ مجرمان خلق دی ، نو (حکم وشو چه اے موسیٰؑ!) ته زما بندګان د

لَيْلًا إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ﴿٢٣﴾ وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا ۖ إِنَّهُمْ جُندٌ مُّغْرَقُونَ ﴿٢٤﴾

په وخت د شپے | بیشکه ستاسو | تعاقب به کولے شی | او پریږده | سمندر | په قلار | بیشکه دوی | لښکر دے | ډوبیدونکے -

شپے شپے (د مصر نه) او باسه تعاقب به در پسے کیږی او دریاب غلے په قلار پریږده ، د دوی ټول لښکر به ډوبیږی

كَمْ تَرَكُوا مِن جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿٢٥﴾ وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴿٢٦﴾

څومره | دوی پریښودل | باغونه | او چینے | او فصلونه | او محلونه | ښائسته

نو دغه خلقو څومره باغونه او چینے پریښودے ؟ او فصلونه او ښه ښائسته محلونه

وَنَعْمَةٍ كَانُوا فِيهَا فَاكِهِينَ ﴿٢٧﴾ كَذَٰلِكَ ۖ وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ ﴿٢٨﴾

اونعمتونه | چه وو دوی په هغې کښې | مزه اخستونکي | دغه شان | او مونږ وارث کړو د هغې | بل قوم

اوډ آرام سامانونه چه دوی به پکښې اوسیدل ۔ هم دغسې وُشوه او مونږ بل قوم د هغې ټولو څیزونو مالک کړو

فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ وَمَا كَانُوا مُنظَرِينَ ﴿٢٩﴾ وَلَقَدْ نَجَّيْنَا

پس ونه ژړل | په دوی باندې | آسمان | او زمکې | او نه به دوی ته مهلت ورکولے شي | او مونږ نجات ورکړو

نو نه خو پرې آسمان او نه زمکې ژړا وُکړه او نه ورته مهلت ورکړے شو ۔ او مونږ بني اسرائیل

بَنِي إِسْرَائِيلَ مِنَ الْعَذَابِ الْمُهِينِ ﴿٣٠﴾ مِن فِرْعَوْنَ ۚ إِنَّهُ كَانَ

بني اسرائیلو ته | له عذاب | سپکوونکي نه | (یعني) د فرعون نه | بیشکه هغه وو

د سپکوونکي عذاب نه خلاص کړل ۔ یعني د فرعون نه هغه ډیر سرکشه وو

عَالِيًا مِّنَ الْمُسْرِفِينَ ﴿٣١﴾ وَلَقَدِ اخْتَرْنَاهُمْ عَلَىٰ عِلْمٍ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿٣٢﴾

سرکشه | له حد نه تیریدونکو نه | او بیشکه مونږ غوره کړي وو دوی | په پوهه سره | په عالمونو باندې

د حد نه وړاندې تیریدونکے وو او مونږ په خپل علم سره بني اسرائیلو له په ټول مخلوق باندې فضیلت ورکړو

وَآتَيْنَاهُم مِّنَ الْآيَاتِ مَا فِيهِ بَلَاءٌ مُّبِينٌ ﴿٣٣﴾ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ

او مونږ ورکړے دوی ته | نخښې | چه په هغې کښې وو | آزمیښت | ښکاره | بیشکه | دا خلق

او مونږ هغوئ له داسې نخښې ورکړے وے چه پکښې واضح آزمیښت وو ۔ بیشکه دا (کفار)

لَيَقُولُونَ ﴿٣٤﴾ إِنْ هِيَ إِلَّا مَوْتَتُنَا الْأُولَىٰ وَمَا نَحْنُ بِمُنشَرِينَ ﴿٣٥﴾

وائي | نه ده دا | مګر زمونږ مرګ | وړومبے | او نه به یو مونږ | راپاڅولی شوی

وائي چه بس دغه د دنیا مرګ (زمونږ آخري انجام) دے او بیا به نه راژوندي کیږو ۔

فَأْتُوا بِآبَائِنَا إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٣٦﴾ أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ

پس راولئ | زمونږ پلار نیکه | که چرے یئ تاسو | رښتیني | آیا دوی | غوره دي | یا

نو که تاسو پیغمبران رښتیني یئ نو زمونږ پلاران نیکونه راواپس کړئ ۔ آیا (په قوت او طاقت کښې) داخلق بهتر دي یا

قَوْمُ تُبَّعٍ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ أَهْلَكْنَاهُمْ ۖ إِنَّهُمْ كَانُوا

قوم | د تُبّع | او هغه خلق | چه له دوی نه وړاندې وو | مونږ هلاک کړل دوی | بیشکه دوی | وو

د تُبّع قوم او هغه خلق چه له دوئ نه وړاندې تیرشوي دي ، مونږ دغه ټول هلاک کړل ، بیشکه هغوئ لوئے

مُجْرِمِينَ ﴿٣٧﴾ وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا

مجرمان خلق | او نه دي پیدا کړي مونږ | آسمانونه | او زمکه | او څه چه | د دې دواړو په مینځ کښې دي

مجرمان وو او مونږ آسمانونه او زمکه او څه چه د دې دواړو په مینځ کښې دي

لَاعِبِينَ ﴿٣٨﴾ مَا خَلَقْنَاهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٩﴾

لوبې کوونکي | مونږ نه دي پیدا کړي دا دواړه | مګر | د حکمت لاندې | او لیکن | اکثر په دوی کښې | نه پوهیږي ۔

بے کاره نه دي جوړ کړي ، مونږ دا دواړه په ډیر حکمت پیدا کړي دي لیکن په دوی کښې اکثر نه پوهیږي

اِنَّ یَوْمَ الْفَصْلِ مِیْقَاتُهُمْ اَجْمَعِیْنَ ﴿۴۰﴾ یَوْمَ لَا یُغْنِیْ مَوْلًی

بیشکه | ورځ | دَ فیصلې | دَ دوئ وعده ده | دَ ټولو | په کومه ورځ چه به | په کار نهٔ راځي | څوک دوست

بیشکه چه دَ فیصلې ورځ دَ دِے ټولو مقرره نیټه ده، په دغه ورځ به هیڅ یو دوست دَ بل

عَنْ مَّوْلًی شَیْئًا وَّلَا هُمْ یُنْصَرُوْنَ ﴿۴۱﴾ اِلَّا مَنْ رَّحِمَ اللّٰهُ

دَ بل دوست | هیڅ هم | اونهٔ به دوی ته | امداد ملاویږي | مګر | په چا چه | رحم وکړو | الله

دوست هیڅ په کار نهٔ راځي او نهٔ به ئے امداد کیږي مګر په چا چه الله تعالیٰ رحم وکړي

اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِیْزُ الرَّحِیْمُ ﴿۴۲﴾ اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوْمِ ﴿۴۳﴾ طَعَامُ

بیشکه هم دے | غالب | مهربان دے | بیشکه | اُونه | دَ زقوم | طعام

بیشکه هغه ډیر زبردست دے مهربان دے - بیشکه دَ زقوم اُونه به دَ ګناهګارو

الْاَثِیْمِ ﴿۴۴﴾ کَالْمُهْلِ یَغْلِیْ فِی الْبُطُوْنِ ﴿۴۵﴾ کَغَلْیِ الْحَمِیْمِ ﴿۴۶﴾

دَ ګناهګارو دے | په شان دَ ویلي شوي تانبے | جوش به وهي | په خیټو کښے | په شان دَ جوشیدو | دَ ګرمو اُوبو

خوراکه وی، لکه ویلي شوے تانبه - په ګیډو کښے به (هم دغه شان) یشیږي لکه ګرمے اوبهٔ چه یشیږي -

خُذُوْهُ فَاعْتِلُوْهُ اِلٰی سَوَآءِ الْجَحِیْمِ ﴿۴۷﴾ ثُمَّ صُبُّوْا فَوْقَ رَاْسِهٖ

وُنیسئ دے | بیا را کاږئ دے | دَ دوزخ مینځ پورے | بیا | واړوئ | دَ ده دَ سر دَ پاسه

(حکم به وُشي) دے راوُنیسئ او دَ دوزخ مینځ ته ئے راکاږئ - بیا ورله په سر باندِ تکلیف رسوونکے

مِنْ عَذَابِ الْحَمِیْمِ ﴿۴۸﴾ ذُقْ اِنَّکَ اَنْتَ الْعَزِیْزُ الْکَرِیْمُ ﴿۴۹﴾ اِنَّ هٰذَا

عذاب | دَ یشیدو اُوبو | وُڅکه | بیشکه ته | لوئے یئے | قدرمند یئے | بیشکه دا دی

ګرمے اُوبهٔ توئے کړئ (وُبه وئیلے شي) دَ ئے خوند واخله تهٔ خو ډیر عزتمند او درونډ سړے وے ! - دا هغه عذاب

مَا کُنْتُمْ بِهٖ تَمْتَرُوْنَ ﴿۵۰﴾ اِنَّ الْمُتَّقِیْنَ فِیْ مَقَامٍ اَمِیْنٍ ﴿۵۱﴾

هغه څه چه په هغے کښے | تاسو شک کولو | بیشکه | پرهیزګاران به | په ځائے | دَ امن کښے وی

دے چه تاسو به دَ دِے په حقله شکمن وئ - بیشکه پرهیزګار خلق به دَ امن په ځائے کښے دیره وی -

فِیْ جَنّٰتٍ وَّعُیُوْنٍ ﴿۵۲﴾ یَّلْبَسُوْنَ مِنْ سُنْدُسٍ وَّاِسْتَبْرَقٍ

په باغونو کښے | او چینو کښے | اغوندی به | له باریکو ریښمو نه | او دَ پیړو ریښمو نه

په باغونو او په چینو کښے به (تاست) وی - دَ ریښمو نرئ او غټې جامے به اغوندی، یو بل ته

مُّتَقٰبِلِیْنَ ﴿۵۳﴾ کَذٰلِکَ وَزَوَّجْنٰهُمْ بِحُوْرٍ عِیْنٍ ﴿۵۴﴾ یَدْعُوْنَ

یو بل ته مخامخ به وی | هم دغه شان (به وی) | او مونږ به بیبیانے جوړه کړو دَ دوی | حورے | دَ غټو سترګو والا | دوی به راغواړی

مخامخ به ناست وی، دا خبره هم دغسے ده او مونږ به ورته سرے سپینے دَ غټو غټو سترګو میرمنے ښځے واده کړو

فِیْهَا بِکُلِّ فَاکِهَةٍ اٰمِنِیْنَ ﴿۵۵﴾ لَا یَذُوْقُوْنَ فِیْهَا الْمَوْتَ اِلَّا

په دے کښے | دَ هر قسم | میوے | په امن سره | نه به څکی | هلته | (مزه) دَ مرګ | سیوا

هر رنګ میوے به په اطمینان راغواړی - دَ دنیا دَ وړومبنی (تیرشوی) مرګ نه بغیر بل

الْمَوْتَةَ الْأُولَىٰ ۚ وَوَقَاهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ ﴿٥٦﴾ فَضْلًا

ذَ وړومبی مرګ نه | او (الله) به ژغورلی دوی | له عذاب | ذَ دوزخ نه | دا به فضل وی

مرګ به نهٔ وی ، او الله تعالیٰ به ئے ذَ دوزخ ذَ عذاب نه بچ کړی . دا ټول ستا ذَ

مِّن رَّبِّكَ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٥٧﴾ فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ

ستا ذَ رب | هم داده | هغه | کامیابي | ډیره لویه | پس بیشکه | آسان کړو مونږ قرآن

رب فضل دے او هم دغه غټه کامیابي ده . نو مونږ دا قرآن ستا

بِلِسَانِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٥٨﴾ فَارْتَقِبْ إِنَّهُم مُّرْتَقِبُونَ ﴿٥٩﴾

ستا په ژبه کښې | ښائیږی چه دوی | نصیحت حاصل کړی | پس تهٔ انتظار کوه | بیشکه دوی هم | انتظار کوونکی دی

په ژبه آسان کړے دے چه دوئ نصیحت قبول کړی نو تهٔ هم انتظار کوه او دوئ هم انتظار کوی ـــــ

سُورَةُ الْجَاثِيَةِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ سَبْعٌ وَّثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّاَرْبَعُ رُكُوْعَاتٍ

سورة جاثیه په مکه کښے نازل شوا وه په دے کښے ۳۷ آیتونه او ۴ رکوع دی

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

شروع کوم په نوم ذَ الله چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

ذَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان ذَ ډیر زیات رحم خاوند دے

حم ﴿١﴾ تَنزِيلُ الْكِتَابِ مِنَ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ﴿٢﴾

حم | نازل کړے شوے دے | دا کتاب | له طرفه ذَ الله | چه ډیر زبردست | حکمت والا دے

حم ذَ دے کتاب نازلیدل ذَ الله تعالیٰ ذَ طرف نه دی چه زبردست دے ذَ حکمتونو خاوند دے .

إِنَّ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿٣﴾ وَفِي خَلْقِكُمْ

بیشکه | په آسمانونو کښے | او په زمکه کښے | نخښے دی | ذَ ایمان والوُ ذَ پاره | او | ستاسو په پیدا وښت کښے

په آسمانونو او زمکه کښے ذَ ایماندارو خلقو ذَ پاره ډیرے نخښے دی - او په خپله ستاسو او ذَ دے

وَمَا يَبُثُّ مِن دَابَّةٍ آيَاتٌ لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴿٤﴾ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ

او څهٔ چه هغه خوروی | له ځناورو نه | نخښے دی | ذَ پاره ذَ هغه قوم چه یقین کوی | او په تلو راتلو | ذَ شپے

ځناورو په پیدا وښت کښے ذَ یقین خاوندانو له ډیرے نخښے پرتے دی - او ذَ شپے ورځے په پرله پسے

وَالنَّهَارِ وَمَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِن رِّزْقٍ فَأَحْيَا

او ذَ ورځے کښے | او په هغه څهٔ کښے | چه نازل کړے دے | الله | له آسمان نه | رزق (اوبهٔ) | بیا ئے ژوندئ کړه

تګ راتګ کښے او په هغه روزئ کښے چه الله تعالیٰ ذَ آسمان نه راکوزه کړه نو زمکه ئے پرے

بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ آيَاتٌ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٥﴾

په دے سره | زمکه | پس له مړه کیدلو ذَ هغے نه | او په ګرځیدلو | ذَ بادونو کښے | نخښے دی | عقلمندو ذَ پاره

ذَ اوچیدو نه پس بیا را ژوندئ کړه او ذَ بادونو په اوړیدو راوړیدو کښے ذَ هوښیارانو ذَ پاره ډیرے نخښے دی

تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۖ فَبِأَيِّ

دا | آیتونه دی | ذَ الله | چه تلاوت کوو مونږ ذَ دے | په تا | په حق سره | پس په کوم

دا ذَ الله تعالیٰ آیتونه دی چه مونږ ئے تا ته سم سم اورَوو - بیا دا (خلق)

حَدِيثٍۭ بَعْدَ اللّٰهِ وَاٰيٰتِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ⑥ وَيْلٌ لِّكُلِّ اَفَّاكٍ

خبره | پس دَ الله | او دَ دهٔ دَ آیتونو نه | دوی ایمان راوړی | تباهی ده | دَ هر | دروغژن

دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ آیتونو نه پس به په کومه خبره ایمان راوړی؟ هر دروغژن نافرمان له تباهی

اَثِيْمٍ ⑦ يَّسْمَعُ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُتْلٰى عَلَيْهِ ثُمَّ يُصِرُّ

گناهګار دَ پاره | چه آوری | آیتونه دَ الله | چه لوستلے شی | په دهٔ | بیا | اصرار کوی

مقرر ده چه دَ الله تعالیٰ آیتونه کوم چه دهٔ ته اوروَلے شی آوری او بیا هم په خپل غرور کښے

مُسْتَكْبِرًا كَاَنْ لَّمْ يَسْمَعْهَا ۚ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ⑧

په تکبر کولو سره | لکه چه | دهٔ هغه آوریدلی نهٔ وی هغه | پس زیرے ورکړه دهٔ ته | دَ عذاب | دردناک

داسے نښتے پروت وی لکه چه هغه و آوریدلی ئے نهٔ وی نو تهٔ داسے کس له دَ دردناک عذاب زیرے ورکړه

وَاِذَا عَلِمَ مِنْ اٰيٰتِنَا شَيْئَا ۨ اتَّخَذَهَا هُزُوًا ۗ اُولٰٓئِكَ

او هر کله چه | دے پوهه شی | زمونږ له آیتونو نه | په څهٔ څیز | نو نیسی دے هغه | په مسخرو | هم داخلق دی

او څهٔ وخت چه زمونږ په آیتونو کښے دَ یو آیت نه خبر شی نو خندا کانے وربورے شروع کړی داسے خلقو

لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ⑨ ۭ مِنْ وَّرَآئِهِمْ جَهَنَّمُ ۚ وَلَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ

چه دوی دَ پاره | عذاب دے | سپکونکے | دَ دوئی په وړاندې | دوزخ دے | او په کار به رانشی | دَ دوی

له سپکونکے عذاب مقرر دے - دوئی نه وړاندې دوزخ تیار پروت دے - او دا خپله (دنیوی) ګټه به ورته

مَّا كَسَبُوْا شَيْـًٔا وَّلَا مَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ ۚ وَلَهُمْ

څه چه دوی ګټلی | هیڅ هم | او نهٔ | هغه چه دوی ګڼلی | سیوا | دَ الله نه | دوستان | او دوی دَ پاره

هیڅ فائده ورنهٔ کړی ، او نهٔ هغه معبودان چه دَ خدائے نه سیوائے ځان له نیولی دی او هغوئی دَ

عَذَابٌ عَظِيْمٌ ⑩ ۭ هٰذَا هُدًى ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ لَهُمْ

عذاب دے | لوئے | دا | هدایت دے | او کوم خلق چه | منکران دی | دَ آیتونو دَ رب خپل | هغوئی دَ پاره

پاره لوئے عذاب مقرر دے دا (قرآن سراسر) هدایت دے، او څوک چه دَ خپل رب آیتونه نهٔ منی هغوئی له دَ

عَذَابٌ مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ ⑪ ۧ اَللّٰهُ الَّذِيْ سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ لِتَجْرِيَ

عذاب دے | له دردناک عذاب نه | الله هغه ذات دے | چه تابع ئے کړو | تاسو دَ پاره | دریاب | چه چلیږی

سختئ نه ډک (او) دردناک عذاب مقرر دے. الله هغه ذات دے چه تاسو له ئے سمندر تابع کړے دے چه کشتئ

الْفُلْكُ فِيْهِ بِاَمْرِهٖ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ⑫ ۚ

کشتئ | په هغے کښے | دَ دهٔ په حکم | او چه تاسو ولټوئ | دَ دهٔ فضل | او دَ پاره دَ دے چه تاسو | شکر وکړئ

پکښے دَ هغهٔ په حکم چلیږی او دَ پاره دَدے چه تاسو دَ هغهٔ دَ فضل تلاش وکړئ او چه شکر ادا کړئ -

وَسَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا

او تابع کړل دهٔ | تاسو دَ پاره هغه څهٔ | چه په آسمانونو کښے دی | او هغه څهٔ | چه په زمکه کښے دی | ټول

او څومره څیزونه چه په آسمانونو او په زمکه کښے پراته دی هغه ټول ئے درته دَ خپل طرف نه

مِنْهُ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿١٣﴾ قُل لِّلَّذِينَ

دَ خپل اړخ نه | بیشکه | په دے کښے | نخښے دی | دَ هغه خلقو دَ پاره | چه فکر کوی | دوایه | هغه خلقو ته

ایجاد کړل ۔ په دے کښے دَ فکر دَ خاوندانو دَ پاره نخښے پرتے دی۔ ته مؤمنانو ته ووایه چه هغه خلق

آمَنُوا يَغْفِرُوا لِلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ أَيَّامَ اللَّهِ لِيَجْزِيَ قَوْمًا

چه ایمان ئے راوړو | چه معاف کړی | هغوته چه | اُمید نه لری | دَ ورځو دَ الله | دَ پاره دَ دے چه سزا ورکړی دے | یو قوم ته

(دَ خپل اړخ نه) معاف وګڼړی چه دَ الله تعالیٰ په معاملو یقین نه ساتی (دَ پاره دَ دے) چه الله (په مخپله)

بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿١٤﴾ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ ۖ وَمَنْ أَسَاءَ

دَ هغه څه چه دوی به کول | چا چه عمل وکړو | نیک | نو دَ خپل ځان دَ پاره | او چا چه بد کار وُکړو

یو قوم له دَ خپل عمل بدله ورکړی۔ چا چه دَ نیکئ کار وُکړو نو خپل ځان له ئے وُکړو او څوک چه بد کوی

فَعَلَيْهَا ۖ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ ﴿١٥﴾ وَلَقَدْ آتَيْنَا

پس وبال ئے په ده دے | بیا به | طرف دَ رب خپل ته | راجمع کولے شئ تاسو | او بیشکه | ورکړے وو مونږ

نو دَ خپل ځان سره بد کوی بیا ستاسو دَ ټولو دَ پاره خپل رب ته پستنه تګ مقرر دے۔ او مونږ بنی اسرائیلو ته کتاب

بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ وَرَزَقْنَاهُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ

بنی اسرائیلو ته | کتاب | او حکومت | او نبوت | او مونږ روزی ورکړه دوی ته | له پاکیزه څیزونو نه

حکمت او نبوت ورکړے وو ، او ښه پاکیزه خوراکونه مو ورته نصیب کړی وُو ۔

وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿١٦﴾ وَآتَيْنَاهُم بَيِّنَاتٍ مِّنَ الْأَمْرِ ۖ

او بزرګی ورکړه مونږ دوئ ته | په عالمونو باندِ | او ورکړے وے مونږ دوئ ته | نخښے واضحه | په باره دَ دین کښے

او په ټول جهان مو ورته فضیلت ورښلے وو ۔ او هغوئ ته مو دَ دین په حقله څرګندِ دلیلونه ورکړی دو ۔

فَمَا اخْتَلَفُوا إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ۚ

پس اختلاف ونهٔ کړو دوی | مګر پس له دے نه چه | راغے دوئ ته | علم | په وجه دَ ضد | په خپل مینځ کښے

نو دغه خلقو دَ سم علم دَ راتلو نه پس دَ خپل ضد په وجه اختلاف شروع کړو

إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ

بیشکه ستا رب به | فیصله وکړی | دَ دوئ په مینځ کښے | په ورځ | دَ قیامت | په هغه څه کښے | چه دوی به په هغے کښے

بیشکه چه ستا رب به دَ هغوئ ترمینځه دَ قیامت په ورځ دَ اختلافی خبرو په حقله فیصله

يَخْتَلِفُونَ ﴿١٧﴾ ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٍ مِّنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا

اختلاف کولو | بیا | مونږ کړے ته | په یوه خاص طریقه | دَ دین | نو پیروی کوه ته دَ هغے

وُکړی ۔ بیا (اے پیغمبره!) مونږ ته دَ دین په یوه خاصه طریقه روان کړے نو ته په دے طریقه روان وُسیږه

وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٨﴾ إِنَّهُمْ لَن يُغْنُوا عَنكَ

او پیروی مهٔ کوه | دَ خواهشونو | دَ هغو خلقو چه | نه پوهیږی | بیشکه دوی به | هیڅ کله په کار نهٔ راځی | ستا

او دَ دے جاهلانو په خواهشونو پسے مه ځه ۔ دوئ دَ الله تعالیٰ په مقابله کښے ستا هیڅ

مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَاللّٰهُ

دَالله په مقابله کښې | هيڅ هم | او بيشکه | ظالمان خلق | ځينې له دوی نه | دوستان دی دَ ځنو | او الله

په کار راتلې نهٔ شي ، او ظالمان خلق په خپل مينځ کښې دَ يو بل دوستان وی او الله تعالیٰ دَ

وَلِيُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۹﴾ هٰذَا بَصَآئِرُ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ

دوست دے | دَ پرهيزګارانو | دا (قرآن) | دليلونه واضح دی | دَ پاره دَ خلقو | او هدايت دے | او رحمت دے

پرهيزګارانو دوست دے دا قرآن عامو خلقو دَ پاره دَ هوښيارتيا او دَ هدايت ذريعه ده او دَ يقين کوونکو

لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿۲۰﴾ اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ اجْتَرَحُوا السَّيِّاٰتِ

دَ هغه قوم دَ پاره | چه يقين کوی | آيا خيال کوی | هغه خلق | چه وے کړل | جرمونه

دَ پاره لوئے رحمت دے آيا څوک چه بد کاروونه کوی دَ هغوئ دا خيال دے چه

اَنْ نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ سَوَآءً مَّحْيَاهُمْ

چه کړو به مونږ دوی | په شان دَ هغه خلقو | چه ايمان ئے راوړو | او عمل ئے وکړو | نيک | يوشان به وی | ژوندون دَ دوی

مونږ به ئے دَ هغو خلقو سره برابر وګڼړو چه ايماندار دی او دَ نيکئ کاروونه کوی ، چه دَ دے تولو ژوند او مرګ

وَمَمَاتُهُمْ ؕ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَخَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

او مرګ دَ دوی | بد دے | کوم چه | دوی فيصله کوی | او پيدا کړل | الله | آسمانونه | او زمکه

په يو برابر شي ؟ دا خو دوئ ډيره خرابه فيصله کوی ۔ او الله تعالیٰ آسمانونه او مزکه په حکمت سره پيدا

بِالْحَقِّ وَلِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۲۲﴾

په حکمت سره | او چه جزا ورکړے شي | هر نفس ته | دَ هغه څه | چه دهٔ وکړل | او په دوئ به | هيڅ ظلم نهٔ کيږی.

کړی دی او دا چه هر چا ته به دَ خپل عمل بدله ورکړے شي او په هغوئ به هيڅ ظلم نهٔ کيږی.

اَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ

آيا تا نهٔ دی ليدلی | هغه چا ته چه ونيولو | خپل معبود | خپل خواهش | او ګمراه کړو هغه | الله | سره دَ علمه

آيا تا دَ هغے چا حالت نه کتلی دی چه دَ خپل نفس خواهش ئے خپل معبود جوړ کړے دے او الله دَ هغه کس سره دَ پوهے ګمراه کړے دے

وَّخَتَمَ عَلٰى سَمْعِهٖ وَقَلْبِهٖ وَجَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ غِشٰوَةً ؕ فَمَنْ

او مهر ئے ووهلو | دَ دهٔ په غوږونو | او دَ دهٔ په زړهٔ | او وائے چوله | دَ دهٔ په سترګو | پرده | نو څوک به

او دَ هغهٔ په غوږونو او په زړهٔ ئے مهر لګولے دے او په سترګو ئے ورله پرده اچولے ده نو دَ الله تعالیٰ

يَّهْدِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ اللّٰهِ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَقَالُوْا مَا هِيَ اِلَّا

لاره وښائی دهٔ ته | پس دَ الله نه | نو آيا تاسو غور نهٔ کوئ | او دوئ ووئيل | نهٔ دے دا ژوند | مګر

(دَ پريښودو) نه پس به ورته څوک لاره وښودے شي ؟ نو آيا تاسو غور نهٔ کوی ؟ او دا خلق وائي چه زمونږ (ژوند) خو بس

حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوْتُ وَنَحْيَا وَمَا يُهْلِكُنَآ اِلَّا الدَّهْرُ ۚ وَمَا لَهُمْ

ژوند زمونږ | دَ دنيا | چه مونږ مړه کيږو | او ژوندی کيږو | او نهٔ هلاکوی مونږ | مګر | زمانه | او نشته دوی ته

هم دا دَ دنيا ژوند دے چه مونږ مرو او پيدا کيږو او بس دغه زمانه ده چه مونږ وژنی ، او دوئ سره په دے

ع ۱۰ / ۱۸

بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۚ اِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ ﴿۲۴﴾ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ

دې (خبرې) | څه علم | نه دي دوی | مګر | ګمان کوي | او هر کله چه | لوستې شي | په دوی باندې

خبره هیڅ دلیل نشته. دوی خو محض د وهم او ګمان نه کار اخلي. او څه وخت چه ورته زمونږ څرګندې آیتونه

اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ مَّا كَانَ حُجَّتَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوا ائْتُوْا بِاٰبَآىِٕنَآ

زمونږ آیتونه | چه واضحه دي | نو نه وي | د دوی څه (بل) دلیل | سیوا د دې نه چه دوی وائي | راولئ | پلاران زمونږ

ولوستې شي، نو دوی سره د دې نه سیوا بل هیڅ جواب نه وي چه داوائي چه که تاسو رښتینې يئ نو زمونږ

اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۲۵﴾ قُلِ اللّٰهُ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ

که چرې يئ تاسو | رښتیني | ووایه | الله | ژوندي کوي تاسو | بیا به مړه کړي تاسو | بیا به جمع کړي تاسو

(مړه) پلاران نیکونه را مخامخ کړئ. ورته ووایه چه هغه خدای دې چه تاسو ژوندي ساتي بیا تاسوله مرګ راولي، بیا هم هغه تاسو

اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

په ورځ | د قیامت | نشته (څه) شک | په دې کښې | لیکن | اکثر | خلق

د قیامت په ورځ را جمع کړي چه په دې کښې هیڅ شک نشته خو اکثر خلق (په دومره خبره هم) نه

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۶﴾ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَيَوْمَ تَقُوْمُ

نه پوهیږي | او الله د پاره ده | بادشاهي | د آسمانونو | او د زمکې | او په کوم ورځ چه به | قائم شي

پوهیږي - او د آسمانونو او د زمکې بادشاهي صرف د الله تعالیٰ ده، او په کومه ورځ چه قیامت

السَّاعَةُ يَوْمَىِٕذٍ يَّخْسَرُ الْمُبْطِلُوْنَ ﴿۲۷﴾ وَتَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ

قیامت | په دغه ورځ به | تاوانیان شي | اهل باطل | او وبه وینې ته | هر یو امت

قائم شي نو په هغه ورځ به د باطل ملګري په غټ تاوان کښې پریوزي. او ته به هره یوه فرقه ووینې چه په

جَاثِيَةً ۣ كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰٓى اِلٰى كِتٰبِهَا ۭ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا

په ګونډو پریوتي | هر یو امت به | رابللې شي | خپلې عملنامې طرف ته | نن ورځ به | تاسو ته بدله درکولې شي | د هغه څه

ګونډو به پریوتي وي، هره یوه فرقه به خپلې عملنامې ته ور مخامخ کړې شي. چه نن به تاسو ته د خپلو کارونو

كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۸﴾ هٰذَا كِتٰبُنَا يَنْطِقُ عَلَيْكُمْ بِالْحَقِّ ۭ اِنَّا كُنَّا

چه تاسو به کول | دا | زمونږ کتاب دې | چه خبرې کوي | ستاسو په حقله | په حقه | بیشکه مونږ به

بدله درکیدې شي. دا زمونږ جوړ کړې دفتر دې چه ستاسو په مقابله کښې رښتیا رښتیا خبرې کوي، مونږ خو به

نَسْتَنْسِخُ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۹﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

لیکل | هغه څه چه | تاسو به کول. | پس هغه خلق چه | ایمان ئې راوړې دې | او عملونه ئې وکړل

ستاسو ټول کارونه (په فرښتو باندې) لیکل. نو چا چه ایمان راوړې دې، او د نیکۍ کارونه

الصّٰلِحٰتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِيْ رَحْمَتِهٖ ۭ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ﴿۳۰﴾

نیک | نو داخل به کړي دوی | د دوی رب | په خپل رحمت کښې | هم دا ده | کامیابي | ښکاره

ئې کول، نو د هغوی رب به هغوی په خپل رحمت کښې داخل کړي او ښکاره کامیابي هم دغه ده.

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا أَفَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ

او لیکن | کوم خلق چه | منکر شول | پس آیا نهٔ وو | زما آیتونه | چه لوستلے کیدل | په تاسو | پس لوئی وُکړه تاسو

او څوک چه کافران وو نو (هغوئ ته به وویلے شي چه) آیا تاسو ته به زما آیتونه نهٔ لوستلے کیدل. خو تاسو لوئی وُکړه

وَكُنْتُمْ قَوْمًا مُجْرِمِينَ ﴿٣١﴾ وَإِذَا قِيلَ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ

او وئ تاسو | قوم | ګناهګار | او هرکله چه به وُوئیلے شو | بیشکه | وعده دَ الله | رښتینے ده | او قیامت

او تاسو وئ نافرمانه خلق. او چه دا به وُوئیلے شو چه دَ الله تعالیٰ وعده حقه ده او (دَ) قیامت

لَا رَيْبَ فِيهَا قُلْتُمْ مَا نَدْرِي مَا السَّاعَةُ إِنْ نَظُنُّ إِلَّا

نشته هیڅ شک | په (راتلو دَ) دے کښے | نو وُ به وئیل تاسو | مونږ نهٔ پوهیږُو | چه څهٔ دے | قیامت؟ | مونږ خیال نهٔ کوو | مګر

(په راتلو) کښے هیڅ شک نشته نو تاسو به وئیل چه مونږ نهٔ پوهیږو چه قیامت لا څهٔ څیز دے؟ مونږ خو دا محض

ظَنًّا وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ ﴿٣٢﴾ وَبَدَا لَهُمْ سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا

یو ګمان غونډې | او مونږ نهٔ یُو | یقین کوونکي | او ښکاره به شي | دوی ته | بد یانے | دَ هغه څهٔ | چه دوی به کولے

یو خیالی څیز ګڼړو او زمونږ (په دے) هیڅ یقین نشته. او دوئ ته به خپل ټول بد عملونه راښکاره شي، او

وَحَاقَ بِهِمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٣٣﴾ وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنْسَاكُمْ

او را تاؤ به شي | په دوئ | هغه (عذاب) | چه دوئ به ورپورے | ټوقے کولے | او وُ به وئیلے شي | چه نن ورځ به | هیر کړو مونږ تاسو

په کوم څیز پورے چه به دے خندا ټوکے کولے هغه به ورباندې راتاؤ شي. او دا به ورته وُوئیلے شي چه مونږ به مود لسے هیر کړو

كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَٰذَا وَمَأْوَاكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ

لکه چه | هیر کړے وو تاسو | ملاقات | دَ دے ورځے خپلے | او ستاسو ټیکاؤ ځای | دوزخ دے | او نشته تاسو دَپاره

لکه تاسو چه دا ورځ هیره کړے وه ، او ستاسو ټیکاؤ ځای دوزخ دے ، او ستاسو هیڅوک

مِنْ نَاصِرِينَ ﴿٣٤﴾ ذَٰلِكُمْ بِأَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ هُزُوًا وَغَرَّتْكُمُ

څوک مددګار | دا (عذاب) | په وجه دَ هغے دے | چه نیولی وو تاسو | آیتونه دَ الله | په مسخره سره | او دوکه ورکړه تاسو ته

مددګار نشته — دا ځکه چه تاسو دَ الله تعالیٰ په آیتونو پورے خندا ټوکے کولے او دَ دُنیا ژوند

الْحَيَاةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴿٣٥﴾

ژوند | دَ دُنیا | پس نن ورځ به | دوئ نهٔ شي راویستلے کیدے | له دوزخ نه | او نهٔ به دوئ ته | دَ توبے موقع ملاؤ شي

په دوکه کښے غورزولی وئ نو نن ورځ به دوئ د دوزخ نه بهر نهٔ شي راایستلے او نهٔ به دَ دوئ توبه قبلولے شي

فَلِلَّهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَرَبِّ الْأَرْضِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٣٦﴾

نو الله دَپاره ده | ټوله ستائینه | چه رب دے | دَ آسمانونو | او رب دے | دَ زمکے | (او) رب دے دَ ټولو جهانونو

نو ټول تعریفونه الله تعالیٰ دَپاره دی چه دَ آسمانونو ، زمکے او دَ ټولو جهانونو رب دے .

وَلَهُ الْكِبْرِيَاءُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٣٧﴾

او هم دَ دهٔ دَپاره | لوئی ده | په آسمانونو کښے | او په زمکه کښے | او هم دے | زبردست | حکمت والا

او ټوله لوئی بوازے دَ هغهٔ ده هم په آسمانونو کښے او هم په زمکه کښے او هغه غالب دے دَ حکمت خاوند دے

سُوْرَةُ الْاَحْقَافِ مَكِّيَّةٌ وَّهِیَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | خَمْسٌ وَّثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّاَرْبَعُ رُكُوْعَاتٍ

سورہ احقاف په مکه کښے نازل شوی | شروع کوم په نوم دَ الله چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۳۵ آیتونه او ۴ رکوع دی

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے۔

حٰمٓ ۝١ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ۝٢

حٰمٓ | نازلیدل | دَ کتاب | دَ الله دَ طرف نه | چه ډیر غالب | حکمت والا دے

حٰمٓ۔ دا کتاب الله پاک رالیږلے دے چه غالب دَ حکمتونو خاوند دے

مَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ

نه دی پیدا کړی مونږ | آسمانونه | او زمکه | او څه چه | دَ دے دواړو په مینځ کښے دی | مګر | په حق سره

مونږه آسمانونه او زمکه او دَ دے دواړو ترمینځه څیزونه په ډیر حکمت سره او په یوه

وَّاَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّآ اُنْذِرُوْا مُعْرِضُوْنَ ۝٣

او یو وخت | مقرر دَ پاره | او کوم خلق چه | منکران دی | له هغه څه نه | چه دوی ترې نه ویرولے شول | مخ اړوونکی دی۔

ټاکلے نیټه پیدا کړی دی. او څوک چه کافران دی هغوی چه دَ کوم څیزونه ویرولے شی (هم) دَ هغے څیزونه (په غفلت) مخ وړونه

قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَرُوْنِیْ مَاذَا

ووایه | آیا کتلی دی تاسو هغه څه | چه تاسو ئے عبادت کوئ | سیوا | دَ الله | وښایئ ما ته | څه څیز

اړوی۔ (اے نبی!) ته ورته ووایه چه داخو ووایئ چه تاسو دَ الله تعالیٰ نه بغیر دَ نورو کومو څیزونو عبادت کوئ نو ما ته وښایئ

خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ اَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِی السَّمٰوٰتِ ؕ اِیْتُوْنِیْ

پیدا کړو دوی | له زمکے نه | یا دَ دوی | (څه) شراکت دے | په آسمانونو کښے | راوړئ ما ته

چه هغوی په زمکه کښے کوم څیز پیدا کړے دے یا هغوی (دَ) آسمانونو (په جوړولو) کښے شریک دی۔ که چرے (دَ شرک

بِكِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ هٰذَآ اَوْ اَثٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ

یو کتاب | وړاندې | له دے (قرآن) نه | یا څه روایت | علمی | که چرے یئ تاسو

په حق کښے) تاسو سره څه سابقه آسمانی کتاب یا علمی آثار موجود وی نو ما ته ئے راوړئ که تاسو

صٰدِقِيْنَ ۝٤ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ

رښتیا ویونکی | او څوک | زیات ګمراه دے | له هغه چا نه | چه بلی دے | سیوا

رښتینی یئ۔ او دَ هغه چا نه به غټ ګمراه بل څوک وی چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا

اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لَهٗٓ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَهُمْ

دَ الله نه | هغه څیز | چه جواب نه شی ورکولے | دَ هٔ ته | تر ورځے | دَ قیامت | او دوی

دَ هغه څیزونو عبادت کوی چه تر قیامته پورے به ئے خبره و نه منی بلکه دَ یلنے (د

عَنْ دُعَآئِهِمْ غٰفِلُوْنَ ۝٥ وَاِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوْا لَهُمْ اَعْدَآءً

دَ دوی له بلنے نه | غافله دی | او هر کله چه جمع کړے شی | خلق | نو هغوی به وی دَ دوی | دښمنان

نعرو سورو) نه به ئے خبر هم نه شی؟ او څه وخت چه ټول خلق (دَ قیامت په ورځ) راغونډ کړے شی نو دَ غه معبودان به ئے دښمنان

وَّكَانُوْا بِعِبَادَتِهِمْ كٰفِرِيْنَ ۝٦ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا

اووی به دوی | له عبادت دَدوی نه | انکارکوونکی | او هرکله چه | لوستے شی | په دوی باندِ | زمونږ آیتونه

وُخيږی او دَ دوئ دَ عبادت نه به (ربیځی) منکرشی. او څهٔ وخت چه دَدوئ په وړاندِ زمونږ څرګند او واضحه آیتونه

بَيِّنٰتٍ قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ۙ هٰذَا

واضحه | نو وائی | هغه خلق چه | انکارئے وکړو | دَ حق په باره کښے | هرکله چه هغه راغے دوی ته | چه دا خو

وُلوستے شی نو کافران خلق دَ دِے (ربښتینے خبرے په حقله وائی کومه چه ورته رارسیدلے ده چه دا خو

سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝٧ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ۭ قُلْ اِنِ افْتَرَيْتُهٗ

جادو دے | ښکاره | آیا دوئ وائی | ده دَ ځانه جوړکړے دے دا | ووایه | که چرے ما دا دَ ځانه جوړکړے وی

ښکاره جادو دے. آیا دوئ وائی چه ده (پیغمبر) دا کتاب دَ ځان نه جوړکړے دے؟ ته ووایه چه که ما دا مادَ ځانه جوړکړے

فَلَا تَمْلِكُوْنَ لِيْ مِنَ اللّٰهِ شَيْــًٔا ۭ هُوَ اَعْلَمُ بِمَا

نو تاسو اختیار نهٔ لرئ | زما دَ بچ کولو | دَ الله نه | دَ هیڅ څیز | هم دے | ښهٔ پوهه دے | په هغه خبرو

وی نو تاسو دَ الله تعالیٰ په معامله کښے زما هیڅ هم مدد نهٔ شئ کولے. تاسو چه دَ قرآن په حقله کومے خبرے جوړوئ

تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ ۭ كَفٰى بِهٖ شَهِيْدًۢا بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۭ وَهُوَ الْغَفُوْرُ

چه تاسوئے جوړوئ | دَ دے په حقله | دے کافی دے دَ دِے | ګواه | په مینځ زما او په مینځ ستاسو کښے | او دے | بخښونکے

په دے هغه ډیر ښهٔ پوهه دے، زما او ستاسو تر مینځهٔ ګواهئ له یوازے هغه کافی دے او هغه (الله) ډیر بخښونکے

الرَّحِيْمُ ۝٨ قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَمَآ اَدْرِيْ مَا

مهربان دے | ووایه | نهٔ یم زهٔ | نوے راغلے | له پیغمبرانو نه | او زهٔ نهٔ پوهیږم | چه څهٔ به

زیات رحم کوونکے دے. (اے نبیﷺ) ته ووایه چه زهٔ په رسولانو کښے څهٔ نا آشنا رسول خو نهٔ یم، زهٔ خو په دِے هم نهٔ

يُفْعَلُ بِيْ وَلَا بِكُمْ ۭ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ وَمَآ اَنَا

کولے شی | ماسره | او نهٔ تاسو سره | پیروی نهٔ کوم زهٔ | مګر دَ هغه څهٔ | چه وحئے کولے شی | زما طرف ته | او نهٔ یم زهٔ

پوهیږم چه ماسره به څهٔ (سلوک) کیږی او تاسو سره څه؟ زهٔ خو بس په هغه (حکم) پسے روان یم دَ کوم چه را ته وحی کیږی او زهٔ

اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝٩ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَ

مګر ویرونکے | ښکاره | ووایه | آیا کتلی دی تاسو | که چرے دا (قرآن) دے | دَ الله دَ طرف نه | او

بس یو صفا صفا ویرونکے یم. اے نبی! ته ورته ووایه چه دا خورانه وښایئ چه که دا قرآن دَ الله دَ طرف نه راغلے وی او

كَفَرْتُمْ بِهٖ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى مِثْلِهٖ

تاسو انکار وکړو | په دے | او ګواهی ورکړه | یو ګواه | له بنی اسرائیلو نه | هم دَ دے په شان

بیا تاسو ترے نه منکران شوی یئ او دَ بنی اسرائیلو یو ګواه دَ دے په شان په یو کتاب ګواهی ورکړی، او

فَاٰمَنَ وَاسْتَكْبَرْتُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝١٠

بیا دهٔ ایمان راوړو | او تاسو غرور وکړو | بیشکه الله | لاره نهٔ ښائی | ظالمانو خلقو ته

ایمان ئے راوړی او تاسو په خپل غرور کښے پاتے شئ (نو ستاسو انجام به څهٔ شی) الله تعالیٰ بے انصافه خلقو ته هدایت نهٔ کوی

ع ١

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا

واٸي | هغه خلق | چه کفرے وکړو | هغه خلقو ته | چه ایمانے راوړے دے | که چرے وے دا (دین) | بهتر | (نو)

(دا) کافران دَ مسلمانانو په حقله واٸي چه که دا (قرآن) څه ښهٔ څیز وے نو دوی

سَبَقُونَآ إِلَيْهِ ۚ وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا بِهِ فَسَيَقُولُونَ هَٰذَآ

وړاندې به نهٔ وو کړي دوی په مونږ باندې | دَ طرف نه | او هر کله چه لاره بیا نهٔ موندله دوی | په قرآن | نو اوس به دوی واٸي | (چه) دا (خو)

به پرے زمانه ور مخکښې شوی نهٔ وو او هر کله چه دَ قرآن نه دوی ته هدایت نصیب نهٔ شو نو اوس به دا واٸي چه

إِفْكٌ قَدِيمٌ ﴿١١﴾ وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰٓ إِمَامًا وَرَحْمَةً ۚ وَهَٰذَا

دروغ دی | پخواني | او وړاندې له دے نه | کتاب | دَ موسیٰ (وو) | پیشوا | او رحمت | او دا

دا پخواني دروغ دی۔ او دَ دے (قرآن) نه وړاندې دَ موسیٰ کتاب هم لار ښودونکے او رحمت وو او دا

كِتَابٌ مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِيًّا لِّيُنذِرَ الَّذِينَ ظَلَمُوا وَبُشْرَىٰ

کتاب دے | تصدیق کوونکے | په عربۍ ژبه کښې | چه وویروی | هغه خلق چه ظلم ئے وکړو | او دَ پاره دَ زیرے ورکولو

کتاب دَ هغهٔ تصدیق کوی، په عربۍ ژبه کښې راغلے دے چه ظالمان خلق وویروی او نیکانو خلقو ته

لِلْمُحْسِنِينَ ﴿١٢﴾ إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا فَلَا خَوْفٌ

نیکانو ته | بیشکه | کوم خلق چه ووئیل چه | زمونږ رب | الله دے | بیا | قائم پاتے شول | پس نشته هیڅ ویره

زیرے ورکړی۔ چا چه دا ووئیل چه زمونږ رب الله دے بیا پرے ټینګ پاتے شول نو په هغوی به نهٔ څه

عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١٣﴾ أُولَٰٓئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ خَالِدِينَ

په دوی باندې | او نهٔ به دوی | غمژن وی | هم دا خلق دی | جنتیان | همیشه به وی

ویره راځی او نهٔ به غمژن کیږی۔ هم دغه جنتیان دی چه تل به پکښې مزے

فِيهَا جَزَآءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٤﴾ وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ

په دے کښې | په بدله کښې | دَ هغه کارونو چه | دوی به کول۔ | او حکم وکړو مونږ | انسان ته

کوی، دا جنت دَ هغه کارونو بدله دَه چه هغوی به کول۔ او مونږ انسان ته حکم ورکړے دے

بِوَالِدَيْهِ إِحْسَانًا ۖ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا ۖ

خپل مور او پلار سره | دَ نیکۍ کولو | چه په خیټه کښې اوچت کړے دے | مور دَ دهٔ | په تکلیف سره | او دے زیږولے دے | په تکلیف سره

چه مور پلار سره ښهٔ سلوک ساته۔ دَ دهٔ مور دے په ډیر تکلیف سره خیټه کښې وساتلو او په ډیر تکلیف سره ئے وزیږولو

وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا ۚ حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُ

او دَ دهٔ حمل | او له پیو نه خلاصول دَ دهٔ | دیرش ٣٠ | میاشتے (دی) | تردے چه | هر کله دے ورسیدو | خپلے ځوانۍ ته

او دَ دهٔ دَ حمل زمانه دَ تی نه خلاصیدل په دیرشو ٣٠ میاشتو کښې پوره شو۔ هر کله چه دے خپلے پوره ځوانۍ ته ورسیدو

وَبَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَةً ۙ قَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِىٓ أَنْ أَشْكُرَ

او ورسیدو دے | څلویښتو | کالو ته | نو دهٔ ووئیل | اے زما ربه! | توفیق راکړه ماته | چه زهٔ شکر وکړم

او دَ څلویښتو کالو عمر ته ورسیدو، نو دهٔ ووئیل چه اے زما ربه! ما په دے خبره قائم پاتے کړے چه ستا دَ

بِعْمَتَكَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰى وَالِدَيَّ وَاَنْ اَعْمَلَ

ستا دَ نعمت | هغه چه | انعام کړے دے تا | په ما باندِ | او زما په مور پلار باندِ | او چه زهٔ عمل وکړم

هغه نعمتونو شکریه اداکړم چه ما له او زما مور پلار له دِ ورکړی دی . او دا چه زهٔ دَ نیکئ

صَالِحًا تَرْضٰىهُ وَاَصْلِحْ لِيْ فِيْ ذُرِّيَّتِيْ ۚ اِنِّيْ تُبْتُ

نیک | چه راضی شے ته په هغے | او صلاحیت پیدا کړه | ما دَ پاره | زما په اولاد کښے | بیشکه ما | توبه وکړه

کارونه کوم چه ته پرے رضا شے او زما اولاد زما په حقله سم صالح (نوے) کړے! زهٔ تا ته توبه وُباسم

اِلَيْكَ وَاِنِّيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ⑮ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ

ستا طرف ته | او بیشکه زهٔ | له مسلمانانو نه یم | هم دا هغه خلق دی | چه قبلوو مونږه له دوی نه

او ستا په فرمان منونکو (بندګانو) کښے شامل یم دا هغه کسان دی چه مونږ به دَ دوئ ښهٔ ښه

اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّاٰتِهِمْ فِيْٓ اَصْحٰبِ الْجَنَّةِ ۭ

هغه نیک عمل | کوم چه | دوی وکړو | او مونږه معاف کوو | دَ دوئ ګناهونه | په جنتیانو کښے (به وی)

عملونه قبول کړو ، او ګناهونه به ورته معاف کړو په جنتیانو کښے به شامل شی

وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ⑯ وَالَّذِيْ قَالَ

رښتینی وعده (ده) | کومه چه | دوی سره کولے شی | او هغه څوک چه | وے وئیل

دا (دَ الله تعالیٰ) رښتینے وعده ده چه دوی سره (په دنیا کښے) کولے شی۔ او هغه کس چه مور پلار ته

لِوَالِدَيْهِ اُفٍّ لَّكُمَآ اَتَعِدٰنِنِيْٓ اَنْ اُخْرَجَ وَقَدْ خَلَتِ

خپل مور پلار ته | افسوس دے په تاسو | آیا وعده راکوئ تاسو ما ته | چه زهٔ به دوباره راویستلے شم | حالانکه تیر شوی دی

وو ئیل چه افسوس دے په تاسو، آیا تاسو ما ویروئ چه زهٔ به (قبر نه دوباره) راپاڅولے شم او له ما نه وړاندِ

الْقُرُوْنُ مِنْ قَبْلِيْ ۚ وَهُمَا يَسْتَغِيْثٰنِ اللّٰهَ وَيْلَكَ اٰمِنْ ڰ

امتونه | له ما نه وړاندِ | او دا دواړه | فریاد کوی | الله ته | اے ستا تباهی وُشه | ایمان راوړه

ډیر قومونه تیر شوی دی او دَ هغهٔ مور پلار الله ته فریاد کوی (او خپل ځوئ ته وائی) چه اے بدبخته! ایمان راوړه

اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ ښ فَيَقُوْلُ مَا هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ⑰

بیشکه | وعده دَ الله | رښتینے ده | پس وائی دے | نه دی دا | مګر | قصے | دَ پخوانو خلقو

بیشکه دَ الله تعالیٰ وعده رښتینے ده نو هغه (په جواب کښے) وائی چه دا دَ پخوانو خلقو قصے دی۔

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِيْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ

هم دا هغه خلق دی | چه ثابته شوه | په دوی باندِ | وعده دَ (عذاب) | په امتونو کښے | چه تیر شوی دی

دا هغه خلق دی چه دَ دوئ په حقله دَ الله تعالیٰ وینا پوره شوه، دَ هغه کسانو سره چه دَ دوئ

مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا خٰسِرِيْنَ ⑱

له دوی نه وړاندِ | له پیریانو | او انسانانو نه | بیشکه دوی وو | نقصان موندونکی

نه پخوا تیر شوی دی که پیریان دی او که بنیادم دی، دغه ټول خلق تاوانیان یا تے شول۔

وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا ۚ وَلِيُوَفِّيَهُمْ اَعْمَالَهُمْ

او هر یو دَ پاره | درجے دی | په سبب دَ هغه عملونو | چه دوئی په کول | چه الله پوره بدله ورکړی دوئ ته | دَ دوی دَ عملونو

او هر چا ته به دَ خپل خپل عمل په مطابق (جدا جدا) مرتبے ورکولے شی، دا ځکه چه دَ خپلو خپلو عملونو جزا ورته پوره ورکړی

وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ⑲ وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَلَى النَّارِ ۭ

او په دوئ به هیڅ ظلم نهٔ کیږی | او په کومه ورځ چه | پیش کړے شی | هغه خلق چه | کافران دی | په اور

او په هغوئ به هیڅ ظلم نهٔ کیږی ۔ او په کومه ورځ چه کافران (دَ دوزخ) اور ته ور مخامخ کړے شی

اَذْهَبْتُمْ طَيِّبٰتِكُمْ فِيْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا ۚ

تاسو ختم کړل | خپل دَ مزو شیزونه | دَ دُنیا په خپل ژوند کښے | او فائده واخستله تاسو | په هغے

چه تاسو خو خپل (خوندونه) لذتونه په دُنیا کښے حاصل کړل او بنے مزے مو پورے وکړے

فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُوْنَ

پس نن ورځ به | تاسو ته درکولے شی | عذاب | دَ ذلّت | ځکه چه | تاسو به تکبّر کولو

نو نن به درته دَ ذلّت سزا درکولے شی ځکه چه تاسو په دُنیا کښے بے ځایه

فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنْتُمْ تَفْسُقُوْنَ ⑳ ع وَاذْكُرْ

په زمکه کښے | په ناحقه | او په دے وجه | چه تاسو به نافرمانی کوله | او یاد کړه

غرور کولو ، او نافرمانئ مو کولے ۔ او (اے نبی!) ته دوئ ته دَ

اَخَا عَادٍ ۭ اِذْ اَنْذَرَ قَوْمَهٗ بِالْاَحْقَافِ وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ

ورور | قوم دَ عاد | هر کله چه ده وویرولو | خپل قوم | په (وادئ) دَ احقاف کښے | او تیر شوی دی | ویرونکی

عادیانو دَ ورور (هودؑ) ذکر وکړه چه هغهٔ خپل قوم چه په شګلوړے علاقه کښے وسیدلو (دَ عذابٔ) وویرولو او دَ هغهٔ نه وړاندے

مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖۤ اَلَّا تَعْبُدُوْۤا اِلَّا اللّٰهَ ۭ اِنِّيْۤ

وړاندے له ده نه | او وروستو له ده نه | چه عبادت مهٔ کوئ (دَ چا) | سیوا دَ الله نه | بیشکه زهٔ

او وروستو نور هم ډیر ویرونکی تیر شوی دی (وئیل ئے) چه تاسو بے دَ الله نه دَ بل هیچا عبادت مهٔ کوئ ، ما سره ویره

اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ㉑ قَالُوْۤا اَجِئْتَنَا

ویریږم | په تاسو | له عذاب نه | دَ ورځے لوئے | دوی ووئیل | آیا ته راغلے یے مونږ ته

ده چه په تاسو به دَ یوے لوئے (سختے) ورځے عذاب راشی ۔ هغوئ ورته ووئیل چه آیا ته ځکه راغلے یے

لِتَاْفِكَنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا ۚ فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَاۤ

چه ته واړوے مونږ | زمونږ له معبودانو نه | پس راوله په مونږ | هغه (عذاب) | چه وعدے کوے ته مونږ سره

چه مونږ دَ خپلو معبودانو نه واړوے؟ ، پس ته چه دَ کوم عذاب نه مونږ ویروے هغه راوله

اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ㉒ قَالَ اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ ۖ وَاُبَلِّغُكُمْ

که چرے یے ته | له رښتیا ویونکونه | ده ووئیل | چه علم خو | دَ الله سره دے | او زهٔ رسوم تاسو ته

که ته رښتینے یے ۔ (هودؑ) ووئیل چه دَ دے علم خو الله تعالیٰ ته دے او زهٔ خو تاسو ته هغه پیغام

مَّآ اُرْسِلْتُ بِهٖ وَلٰكِنِّيْٓ اَرٰىكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُوْنَ ﴿٢٣﴾ فَلَمَّا

هغه څه چه رالیږلے شوے یم زهٔ په هغې | او لیکن زهٔ | وینم تاسو | چه (تاسو) یو جاهل قوم یئ | بیا هر کله چه

(قدر) درزسوم دَ کوم دَپاره چه زهٔ رالیږلے شوے یم لیکن زهٔ داوینم چه تاسو دَ جهالت خبرے کوئ، بیا هر کله چه

رَاَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ اَوْدِيَتِهِمْ ۙ قَالُوْا هٰذَا عَارِضٌ

وُلیدلو دوی هغه | چه یو ورېځ | راتلونکے ده | میدانونو دَ دوئ ته | نو دوئ وُوئیل | دا وریځ ده

هغوئ وُلیدل چه یوه وریځ دَ هغوئ دَ علاقے طرف ته راروانه ده نو داسے دوئیل چه دا خو وریځ ده چه

مُّمْطِرُنَا ۭ بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهٖ ۭ رِيْحٌ فِيْهَا عَذَابٌ

وربدونکے په موږ | بلکه | دا هم هغه دے | چه په تَندئ غوښتلو تاسو هغه | باد دے | چه په هغې کښے | عذاب دے

رابانډې به وورېږي - نه بلکه دا خو هغه څیز دے دَ کوم دَپاره چه تلوارکولو تاسو (دا هغه) سیلئ ده په کومه کښے چه دردناک

اَلِيْمٌ ﴿٢٤﴾ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍۢ بِاَمْرِ رَبِّهَا فَاَصْبَحُوْا لَا يُرٰٓى

دردناک | برباد وی | هر یو څیز | په حکم | دَ خپل رب | پس شول دوئ | چه نهٔ شولیدے کیدے

عذاب دے، چه هر یو څیز به دَ خپل رب په حکم سره تباه کړی نو هغوئ داسے (تباه) شول چه دَ کورونو

اِلَّا مَسٰكِنُهُمْ ۭ كَذٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿٢٥﴾ وَلَقَدْ مَكَّنّٰهُمْ

سیوا دَ دوئ دَ کورونو نه | دغه شان | موږ سزا ورکوو | مجرمانو خلقو ته | او موږ قدرت ورکړے وُو دوی ته

نه بغیر نور هیڅ (نخښه) لیدے نهٔ شوه موږ مجرمانو له هم دغسے سزا ګانے ورکوو - او موږ هغوئ له دومره زوراو

فِيْمَآ اِنْ مَّكَّنّٰكُمْ فِيْهِ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَّاَبْصَارًا

په هغه خبرو کښے | چه موږ قدرت نهٔ دے ورکړے تاسو ته | په هغې کښے | او ورکړی وُو موږ | دوی ته | غوږونه | او سترګے

قدرت ورکړے وو چه تاسو له مو درکړے نهٔ دے او هغوئ له مو غوږونه او سترګے او زړونه

وَّاَفْـِٕدَةً ڮ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَآ اَبْصَارُهُمْ وَلَآ

او زړونه | پس نهٔ خو | په کار راغلل | دَ دوئ | غوږونه دَ دوئ | او نهٔ | سترګے دَ دوئ | او نهٔ

ورکړی وو خو نهٔ ورله غوږونو څهٔ کار ورکړو او نهٔ سترګو او نهٔ

اَفْـِٕدَتُهُمْ مِّنْ شَيْءٍ اِذْ كَانُوْا يَجْحَدُوْنَ ۙ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَحَاقَ

زړونه دَ دوئ | هیڅ هم | هر کله چه | دوئ انکار کولو | دَ آیتونو دَ الله | او راوُنیول

زړونو (فائده ورکړه) - ځکه چه دَ الله تعالیٰ دَ آیتونو برخلاف به ضد ولاړ وُو او په کوم

بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٢٦﴾ وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ

دوئ له هغه څه | چه هغې پورے به دوئ | توقے کولے | او بیشکه هلاک کړل موږ | چه | چاپیره ستاسو دی

(عذاب) پورے چه دُ ټوقے کولے هغه ترے نه راتاؤ شو - او موږ تاسو نه ګیر چاپیره نور کلی هم

مِّنَ الْقُرٰى وَصَرَّفْنَا الْاٰيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٢٧﴾ فَلَوْلَا

کلی | او اړولے راړولے موږ ره | نخښے | دَ پاره دَ دے چه دوئ | واپس راوُګرځی | پس ولے

تباه کړی دی او خپلے نخښے مو ورته بیا بیا ښودلی دی دَ پاره دَ دے چه هغوئ راوُګرځی نو هغے کسانو

نَصَرَهُمُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ قُرْبَانًا

مدد ورنکړو دوئ ته | هغه کسانو چه | نیولی وُو دوئ | سیوا | دَ الله نه | (دَ دهٔ) دَ قرب حاصلولو دَ پاره

ورسره وے امداد وُنهٔ کړو کوم چه هغوئ دَ الله تعالیٰ دَ نزدیکت حاصلولو دَ پاره دَ دهٔ نه سیوا معبودان

اٰلِهَةً ۭ بَلْ ضَلُّوْا عَنْهُمْ ۚ وَذٰلِكَ اِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ۝۲۸

معبودان | بلکه | هغوئ ورک شول | له دوئ نه | او دا ؤو | دَ دوئ دروغ | او څهٔ چه | دوئ دروغ جوړول.

جوړکړی وو بلکه هغه دَ دوئ نه ورک شول. او دغه خوټوله دَ دغې خلقو چلے تراشلے او خپے جوړے کړے خبرے وے.

وَاِذْ صَرَفْنَآ اِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُوْنَ الْقُرْاٰنَ ۚ فَلَمَّا

او هر کله چه مونږ راواړول | ستا طرف ته | یو ډله | له پیریانو نه | چه آوریدلو به دوئ | قرآن | پس هر کله چه

او هغه وخت راياد کړه چه مونږ ستا طرف ته دَ پیریانو یو ټولګے راواړولو چه قرآن ته غوږ ونیسي او ویبول، بیا چه هغوئ

حَضَرُوْهُ قَالُوْٓا اَنْصِتُوْا ۚ فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا

دوئ حاضر شول قرآن ته | نو دوئ ووئیل | چپ شئ | پس هر کله چه | پوره کړے شو (لوستل) | نو دوئ واپس شول

قرآن ته راغلل نو دا ئے ووئیل چه چپ شئ (واورئ) بیا چه (تلاوت) پوره شو نو هغوئ خپل

اِلٰى قَوْمِهِمْ مُّنْذِرِيْنَ ۝۲۹ قَالُوْا يٰقَوْمَنَآ اِنَّا سَمِعْنَا كِتٰبًا اُنْزِلَ

خپل قوم طرف ته | دَ ویرولو دَ پاره | دوئ ووئیل | اے زمونږ قومه! | بیشکه مونږ واوریدلو | یو کتاب | چه نازل شوے دے

قوم ته دَ ویرولو په غرض پسته لاړل. هغوئ ووئیل چه اے زمونږه قومه! مونږ یو کتاب آوریدلے دے چه دَ موسیٰ

مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ

پس | له موسیٰ نه | تصدیق کوونکے دے | دَ هغه څهٔ | چه وړاندِ له دهٔ نه وو | لاره ښائی | حق دین طرف ته

(دَ تورات) نه پس نازل کړے شوے دے چه له ځان نه دَ وړاندینو (کتابونو) تصدیق کوی او دَ حقو خبرو او دَ

وَاِلٰى طَرِيْقٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝۳۰ يٰقَوْمَنَآ اَجِيْبُوْا دَاعِيَ اللّٰهِ وَاٰمِنُوْا

او طرف دَ لارے | سمے ته | اے زمونږه قومه! | قبوله کړئ (خبره) | دَ دعوت ورکوونکی دَ الله | او ایمان راوړئ

سمے لارے هدایت کوی. اے زمونږ قومه! دَ الله طرف ته دَ بلونکی (نبی) خبره ومنئ او ایمان پرے

بِهٖ يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ وَيُجِرْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝۳۱

په دهٔ | الله به وبخښی | تاسو دَ پاره | ستاسو ګناهونه | او بچ به کړی تاسو | له عذاب | دردناک نه

راوړئ، الله تعالیٰ به در ته ګناهونه وبخښی او دَ دردناک عذاب نه به مو په امان وساتی

وَمَنْ لَّا يُجِبْ دَاعِيَ اللّٰهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْاَرْضِ

او څوک چه | قبوله نهٔ کړی (خبره) | دَ بلونکی | دَ الله | پس نهٔ دے | دے عاجزه کوونکے | په زمکه کښے

او چا چه دَ الله طرف ته دَ بلونکی (پیغمبر) خبره وُنهٔ منله نو هغه دَ زمکے په مخ الله تعالیٰ عاجزه کولے نهٔ شی

وَلَيْسَ لَهٗ مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَاۗءُ ۭ اُولٰۗىِٕكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۝۳۲ اَوَلَمْ يَرَوْا

او نشته دهٔ دَ پاره | دَ دهٔ نه سیوا | څوک مددګار | هم دا خلق دی | په ښکاره ګمراهئ کښے | آیا دوئ نهٔ دی کتلی

او نهٔ به ئے دَ الله تعالیٰ نه سیوا څوک بل مددګار پیدا شی، هم دغه خلق په ښکاره ګمراهئ کښے پراتهٔ دی، آیا دوئ دا نهٔ کوری

اَنَّ اللّٰهَ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَلَمْ يَعْىَ بِخَلْقِهِنَّ

چہ بیشکہ اللہ | چا چہ | پیدا کړل | آسمانونہ | او زمکہ | او ستړے نہ شو | د دوئ پہ پیدا کولو

چہ اللہ تعالیٰ هغہ ذات دے چہ آسمانونہ او زمکہ ئے پیدا کړی دی او د دے پہ پیدا کولو ستړے شوے نہ دے

بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يُّحْیِۦَ الْمَوْتٰى ؕ بَلٰٓى اِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ

دے قادر دے | پہ دے چہ | ژوندی کړی | مړی | ولے نہ! | بیشکہ دے | پہ هر څیز باندے

هغہ پہ دے هم قدرت لری چہ مړی را ژوندی کړی ولے نہ! هغہ خو پہ هر څۀ باندے پوره پوره قدرت

قَدِيْرٌ ﴿۳۳﴾ وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَلَى النَّارِ ؕ

قادر دے | او پہ کومہ ورځ چہ بہ | پیش کړے شی | هغہ خلق چہ | کافران دی | پہ اور

لری۔ او پہ کومہ ورځ چہ کافران (د دوزخ) اور تہ ور وړاندے کړے شی،

اَلَيْسَ هٰذَا بِالْحَقِّ ؕ قَالُوْا بَلٰى وَرَبِّنَا ؕ قَالَ

آیا نۀ دہ دا (وعده) | حقہ | دوی بہ وائی | ولے نہ | قسم دے پہ رب زمونږ | وُبہ فرمائی

چہ (وائیئ کنہ!) دا حقیقت دے کۀ نا؟ وائی بہ چہ ولے نا قسم دے زمونږ پہ خپل رب (چہ دا برحق دے) نو اللہ تعالیٰ بہ

فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۴﴾ فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ

پس وُڅکئ | (دا) عذاب | پہ بدلہ د هغے | (چہ) تاسو بہ انکار کولو | پس تۀ صبر کوه | لکہ چہ | صبر کړے وو

وفرمائی چہ د خپل کفر پہ وجہ دا عذاب وُڅکئ. نو (اے پیغمبره!) تۀ صبر کوه لکہ نورو د لوړ

اُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَّهُمْ ؕ كَاَنَّهُمْ يَوْمَ

د لوړ همت | پیغمبرانو | او تلوار مۀ کوه | د دوئ د پاره | گویا چہ دوئ | پہ کومہ ورځ

همت خاوندانو پیغمبرانو چہ بہ صبر کولو او د دوئ پہ حقلہ تلوار مۀ کوه. دوئ چہ پہ کومہ ورځ پہ خپلہ

يَرَوْنَ مَا يُوْعَدُوْنَ ۙ لَمْ يَلْبَثُوْٓا اِلَّا سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ ؕ

وو ینی | هغہ (عذاب) | چہ دوئ سره ئے وعده کولے شی | دوئ نۀ وو پاتے شوی | مگر | یو ساعت | د ورځے

نامہ تہ ئے عذاب وو ینی نو بالکل داسے بہ ورتہ ښکاری لکہ چہ (پہ دنیا کښے) پہ ورځ کښے یو ساعت قدرلہ پاتے شوی وی

بَلٰغٌ ۚ فَهَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۳۵﴾ ع

(دا خو) رسول دی | نو آیا | (څوک بل بہ) هلاکولے شی | سیوا | د نافرمانہ خلقو نہ؟

د دے پیغام رسول (رسا کار دے) اوس بہ هم هغہ هلاکولے شی چہ نافرمانہ وی۔

سُوْرَةُ مُحَمَّدٍ مَّدَنِيَّةٌ وَّهِىَ ثَمَانٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَّثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّاَرْبَعُ رُكُوْعَاتٍ

سوره محمد پہ مدینہ کښے نازل شوا د | شروع کوم پہ نامہ د اللہ چہ لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | پہ دے کښے ۳۸ آیتونہ او ۴ رکوع دی

د اللہ تعالیٰ پہ نامہ شروع کوم چہ لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ ﴿۱﴾

کوم خلقو چہ | انکار وُکړو | او منع ئے کړل (خلق) | د اللہ د لارے نہ | (اللہ) ضائع کړل | عملونہ د هغوئ

څوک چہ کافران وو او (خلق ئے) د اللہ تعالیٰ د لارے نہ منع کړل نو اللہ تعالیٰ د هغوئ عملونہ برباد کړل

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَاٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ

او کوم خلقو چه | ایمان راوړو | او عملونه ئے وکړل | نیک | او ایمان ئے راوړو | په هغه څه چه نازل شوی

او چا چه ایمان راوړو او دَ نیکئ کارونه ئے وکړل او په هغه (کتاب) ئے ایمان راوړو چه په محمدؐ باندِ

عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۙ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ

په محمدؐ باندِ | او هم دا حق دے | دَ دوئ دَ رب له طرف نه | الله به لرے کړی | له دوئ نه | دَ دوئ بدیانے

نازل شوے دے او هغه دَ دوئ دَ رب دَ طرف نه حق دے نو الله تعالیٰ به ورله گناهونه معاف کړی

وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ ۝٢ ذٰلِكَ بِاَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا الْبَاطِلَ

او سم به کړی | دَ دوئ حال | دا حُکه چه | کوم خلق | منکران دی | هغوئ پیروی وکړه | دَ باطلو

او دَ هغوئ حالت به سم وُساتی. دا حُکه چه کافران خو په غلطه لاره لاړل -

وَاَنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّبَعُوا الْحَقَّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۭ كَذٰلِكَ

او دا چه | کوم خلقو | ایمان راوړو | هغوئ پیروی وکړه | دَ حق | دَ خپل رب له طرف نه | دغه شان

او دَ ایمان خاوندانو دَ خپل رب دَ طرف نه راغلے حقه لاره غوره کړه.

يَضْرِبُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ اَمْثَالَهُمْ ۝٣ فَاِذَا لَقِيْتُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

بیانوی | الله | خلقو دَ پاره | مثالونه دَ دوئ | بیا هر کله چه | مقابله شئ | دَ هغو خلقو سره | چه کافران دی

الله تعالیٰ په دے شان خلقو ته دَ هغوئ حالتونه بیانوی ، نو هر کله چه کافرانو سره مو مقابله راشی

فَضَرْبَ الرِّقَابِ ۭ حَتّٰٓى اِذَآ اَثْخَنْتُمُوْهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ ۤ ۙ

نو وهئ | (دَ هغوئ) څټونه | تردے چه | هر کله | دَ دوئ ډیرے وینے توئے کړئ | نو مضبوط کړئ (دَ دوئ) قید

نو څټونه ترے نه پریکوئ تردے چه هغوئ په ښه شان سره ووژنئ نو (باقی) په ښه شان سره قید کړئ

فَاِمَّا مَنًّاۢ بَعْدُ وَاِمَّا فِدَاۤءً حَتّٰى تَضَعَ الْحَرْبُ

بیا یا (خو) | احسان وکړئ | پس له دے نه | او یا تاوان (واخلئ) | تردے چه | کیږدی | جنګ

نو بیا یا خو ورسره احسان وکړئ یا ترے نه عوض واخلئ ، تردے چه جنګ (کوونکی) خپله وسله کوزه

اَوْزَارَهَا ۚۛ ذٰلِكَ ۛ ۭ وَلَوْ يَشَاۤءُ اللّٰهُ لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ وَلٰكِنْ

وسلے خپلے | هم دادے (حکم) | او که چرے | الله غوښتلے | نو ضرور به ئے انتقام اخستے وو | له دوئ نه | او لیکن

کړی دا حکم هم دغسے دے ، او که دَ الله تعالیٰ خوښه وے نو دَ دوئ نه به ئے (پخپله) بدل اخستے وو خو دا (حکم

لِّيَبْلُوَا۟ بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ ۭ وَالَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَنْ

چه ئے وُازمائی | ځنے له تاسو نه | په ځنو | او کوم خلق چه | ووژلی شول | په لاره دَ الله کښے | پس هیڅ کله

ئے) ځکه (درکړو) چه دَ یو بل په ذریعه ستاسو ازمیښت وکړی او څوک چه دَ الله تعالیٰ په لاره کښے ووژلے شی نو الله تعالیٰ دَ

يُّضِلَّ اَعْمَالَهُمْ ۝٤ سَيَهْدِيْهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ ۝٥ وَيُدْخِلُهُمُ

الله ضائع نه کړی | عملونه دَ دوئ | لاره به ورښائی دوئ ته | او درست به کړی | حال دَ دوی | او داخل به کړی دوی

هغوئ عملونه هیڅکله نه ضائع کوی ، الله تعالیٰ به هغوئ ته هدایت وکړی او دَ هغوئ حالت به درست ساتی او هغوئ به جنت ته

الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ ۞٦ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ تَنْصُرُوا

جنّت ته | چه دهٔ ښودلے دے دا | دوئ ته | اے ایمان والؤ! | کهٔ چرے مدد وکړئ تاسو

داخلوی چه ورته يې ئے ښئهٔ پېژندګلو کړی اے مؤمنانو! کهٔ چرے تاسو دَ الله تعالیٰ (دَ دين) مدد وکړئ

اللّٰهَ يَنْصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ اَقْدَامَكُمْ ۞٧ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَتَعْسًا لَّهُمْ

دَ الله | دے به مدد وکړی تاسو | او ثابت به کړی | قدمونه ستاسو | او هغه خلق چه | کفر ئے وکړو | نو تباهی ده | دوئ دَ پاره

نو هغه به ستاسو مدد وکړی او ستاسو ښپے به ټينګے ساتی. او څوک چه کافران دی نو هغوئ له بربادی مقرره

وَاَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ ۞٨ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَرِهُوْا مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ

او دهٔ ضائع کړل | دَ دوئ عملونه | دا | ځکه چه دوئ ناخوښه کړو | هغه څيز | چه نازل کړو الله

ده او الله تعالیٰ دَ هغوئ عملونه برباد کړل. دا په دے وجه چه څهٔ الله تعالیٰ نازل کړل هغه دوئ ناخوښه کړل نو

فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ ۞٩ اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ

نو دهٔ ضائع کړل | دَ دوی عملونه | آيا دوی نهٔ دی ګرځيدلی | په زمکه کښے | چه دوی وګوری | چه څنګه

الله تعالیٰ دَ هغوئ عملونه ضائع کړل آيا دا خلق دَ زمکے په مخ ګرځيدلی نهٔ دی چه دائے کتلے وے چه دَ دوئ

كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ دَمَّرَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ ز وَلِلْكٰفِرِيْنَ

شو | انجام | دَ هغو خلقو | چه له دوی نه وړاندے وو | تباهی راوستله | الله | په دوی باندے | او کافرانو دَ پاره

نه دَ پخوانو خلقو انجام څنګه شو؟ الله تعالیٰ هغوئ هلاک کړل او دے کافرانو سره

اَمْثَالُهَا ۞١٠ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ مَوْلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَاَنَّ الْكٰفِرِيْنَ

هم داسے (سزاګانے) دی | دا | ځکه چه الله | کارساز دے | دَ هغه خلقو | چه ايمان ئے راوړو | او دا چه | کافران (چه دی)

هم دغسے معامله کيدونکے ده. دا ځکه چه الله تعالیٰ دَ مؤمنانو ملګرے دے او دَ کافرو هيڅوک

لَا مَوْلٰى لَهُمْ ۞١١ع اِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

څوک کارساز نشته دَ دوی | بيشکه | الله به | داخل کړی | هغه خلق چه | ايمان ئے راوړو | او عملونه ئے وکړل نيک

ملګرے نشته. بيشکه الله تعالیٰ به دَ ايمان او دَ نيک عمل خاوندان داسے باغونو

جَنّٰتٍ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَتَمَتَّعُوْنَ

په باغونو کښے | بهيږی به | لاندے دَ هغے نه | نهرونه | او کوم خلق چه | کافران دی | دوئ فائده اخلی

ته ورننباسی چه دَ هغے لاندے به ويالے بهيږی. او کافران خلق (په دنيا کښے) څهٔ فائده اخلی

وَيَاْكُلُوْنَ كَمَا تَاْكُلُ الْاَنْعَامُ وَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ۞١٢ وَكَاَيِّنْ

او دوئ خوری | څنګه چه | خوری | څاروی | او هم دوزخ | ټيکاؤنړه ده | دوئ دَ پاره | او ډير

او داسے خوراک (څښاک) کوی څنګه چه څاروی خوری (څښی) او (دَ دوزخ) اور ئے ټيکاؤنړه ده او داسے ډير

مِّنْ قَرْيَةٍ هِىَ اَشَدُّ قُوَّةً مِّنْ قَرْيَتِكَ الَّتِىْۤ اَخْرَجَتْكَ ج

کلی | چه هغه | زيات وو په طاقت کښے | ستا دَ کلی نه | کوم چه | تهٔ ايستلے يئے

کلی وو چه ستاسو دَ دغے کلی نه په زور کښے سيوا وو دَ کوم خلقو چه خلقو تهٔ را ايستلے يئے.

أَهْلَكْنٰهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ⑬ أَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ

هلاک کړل مونږ دوی | پس نشته هیڅوک مدد ورکوونکے | دَ دوئ | آیا څوک چه | وی | په واضحه دلیل

مونږ هغوئ هلاک کړل نو هیڅوک مددګار ئے پیدا نه شو . نو آیا څوک چه دَ خپل رب له طرف نه په ښکاره لاره

مِّنْ رَّبِّهٖ كَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ وَاتَّبَعُوْٓا

دَ خپل رب له طرف نه | په شان دَ هغه چا کے؟ | چه ښائسته کړے شوے دے دَ ده نه | دَ ده بد عملونه | او دوئ پیروی وکړه

والا وی هغوئ دَ داسے خلقو سره برابر کیدے شی چه خپله بد عملی ورته ښائسته ښکاری او په خپلو نفسانی

أَهْوَآءَهُمْ ⑭ مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِىْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ ۖ فِيْهَآ

دَ خپلو خواهشاتو | حال | دَ هغه جنّت | دَ کوم چه | وعده کولے شی | پرهیزګارانو سره | (داده) چه په دے کښے به وی

خواهشونو پسے روان دی دَ کوم جنّت چه پرهیزګارو سره لوظ شوے دے هغه داسے جنت دے

أَنْهٰرٌ مِّنْ مَّآءٍ غَيْرِ اٰسِنٍ ۚ وَأَنْهٰرٌ مِّنْ لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهٗ ۚ وَأَنْهٰرٌ

نهرونه | دَ داسے اُوبو | چه خراب به نه وی | او نهرونه | دَ پیو | چه نه به وی بدل شوے | خوند دَ هغے | او نهرونه دی

چه دَ (تازه) اُوبو نهرونه پکښے بهیږی چه هیچرے نه سخاکیږی او دَ داسے شودو ولے چه خوند ئے بو پوتے نه بدلیږی او دَ ښرابو

مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ ۚ وَأَنْهٰرٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى ۖ وَلَهُمْ

له شرابو نه | خوند ورکوونکی | څښونکو ته | او نهرونه دی | له شهدو صاف کړے شوو نه | او دوی دَ پاره

دَ پاره دَ خوند ناکو شرابو ولے او دَ داسے شهدو نهرونه چه بالکل صفا به وی او هلته به ورله

فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ ۖ كَمَنْ

هلته | هر قسم | میوے به وی | او بخښنه | دَ خپل رب له طرف نه | (آیا دوی) به شان دَ هغه چا

دَ هر قسم میوے حاضرے وی او دَ خپل رب دَ طرف نه به ورته بخښنه وی . نو آیا داسے خلق دَ هغه

هُوَ خٰلِدٌ فِى النَّارِ وَسُقُوْا مَآءً حَمِيْمًا فَقَطَّعَ أَمْعَآءَهُمْ ⑮

چه همیشه به وی | په اور کښے | او څښولے به شی په دوی | اوبه | یشنیدے | چه ټکړے به کړی | کولمے دَ دوی

چا په شان کیدے شی چه تل به په اور کښے پراته وی او یشیدلے اوبه به پرے څښولے شی چه کولمے به ورله ټوټے (ټکټه) وغورزوی

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ إِلَيْكَ ۚ حَتّٰىٓ إِذَا خَرَجُوْا مِنْ عِنْدِكَ

او ځنے له دوی نه | هغه دی | چه اوری | ستا خبره | تر دے چه | هر کله بهر نه اُوځی | له نزد ستا نه

او ځنے خلق داسے دی چه تا ته ئے غوږ نیولے وی خو چه ستا دَ مجلس نه بهر اُوځی ،

قَالُوْا لِلَّذِيْنَ أُوْتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ اٰنِفًا ۚ أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ

نو وائی | هغه کسانو ته | کوم ته چه ورکړے شوے | علم | چه څهٔ وویل پیغمبر | اوس اوس | هم داهغه خلق دی | چه مهر لګولے دے

نو دَ علم دَ خاوندانو نه تپوس نه کوی چه دا اوس ئے څهٔ وویل داهغه کسان دی چه الله ورله په زړونو

اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَاتَّبَعُوْٓا أَهْوَآءَهُمْ ⑯ وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا

الله | دَ دوئ په زړونو باندے | او دوئ پیروی وکړه | دَ خپلو خواهشاتو | او هغه کسان چه | لاره ئے موندلے ده

باندے مهر ورته لګولے دی ، او په خپلو خواهشونو پسے روان دی او څوک چه په سمه لاره روان دی

زَادَهُمْ هُدًى وَّاٰتٰىهُمْ تَقْوٰىهُمْ ⑰ فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا

زیات کړو الله دوی ته | هدایت | او ورکړه دوی ته | دَ دوی پرهیزګاری | پس دوی انتظار نهٔ کوی | سیوا

نو الله هغوئ ته نور زیات هدایت کوی او دَ پرهیزګارئ (نورنور) توفیق ورکوی ، نو دا خلق بس دَ قیامت په انتظار

السَّاعَةَ اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً ۚ فَقَدْ جَآءَ اَشْرَاطُهَا ۚ فَاَنّٰى لَهُمْ

دَ قیامت نه | چه هغه په دوئ راشی | ناګهانه | نو راغلے دی | دَ دِے نخښے | پس کوم ځائے به وی | دوی دَ پاره

کښے ناست دی چه ناګهانه پرے راشی نو دَ هغے نخښے خو رابنکاره شوے دی او څهٔ وخت چه هغه په خپله

اِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ ⑱ فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاسْتَغْفِرْ

هر کله چه (قیامت) راشی په دوی | نصیحت | پس یقین وکړه | چه نشته هیڅ معبود | سیوا | دَ الله نه | او معافی وُغواړه ته

ورته مخے ته راشی نو بیا به دَ پوهے وخت چرته وی . نو (اے نبی!) تهٔ یقین سا ته چه دَ الله نه سیوا بل معبود نشته او دَ خپلے خطا ئی

لِذَنْۢبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ۗ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ

دَ خپلے ګناه | او دَ پاره دَ مؤمنانو سړو | او دَ مؤمنانو ښځو | او الله | پیژنی | ستاسو دَ ټګ راتګ ځائے

په حقله معافی غواړه او دَ مؤمنانو سړو او دَ مؤمنانو ښځو دَ پاره هم ، او الله تعالیٰ ته ستاسو دَ ټګ راتګ او دَ استوګنے ځایونه

وَمَثْوٰىكُمْ ⑲ وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُوْرَةٌ ۚ فَاِذَآ

او دَ استوګنے ځائے | او وائی | هغه خلق چه | ایمان ئے راوړو | ولے نازل نهٔ شو | .یو سورت | پس هر کله چه

ټول ډیر ښه معلوم دی . او دَ ایمان والا وائی چه (دَ جهاد په حقله) یو نوے سورت ولے نازل نهٔ شو ؟ .بیا هر کله چه

اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَّذُكِرَ فِيْهَا الْقِتَالُ ۙ رَاَيْتَ الَّذِيْنَ

نازل کړے شو | .یو سورت | محکم | او ذکر وُشو | په هغے کښے | دَ جنګ | نو وینے تهٔ | هغه خلق چه

داسے سورت را نازل شی ، چه په هغے کښے دَ جهاد ذکر وی نو تهٔ هغه خلقو ته ګورے

فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يَّنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ

په زړونو دَ دوئ کښے | .بیماری ده | دوئ ګوری | ستا طرف ته | لکه چه ګوری | هغه کس چه بے هوشی راغلی وی | په هغهٔ

دَ کوم په زړونو کښے چه (دَ نفاق) .بیماری ده هغوئ ستا طرف ته دَ هغه چا په شان ګوری په چا چه دَ مرګ بے هوشی

مِنَ الْمَوْتِ ۗ فَاَوْلٰى لَهُمْ ⑳ طَاعَةٌ وَّقَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ ۚ فَاِذَا عَزَمَ

دَ مرګ | پس تباهی ده دوی دَ پاره | حکم منل | او خبره | نیکه کول (لازم دی) | بیا هر کله چه | اراده وکړے شی

خوره وی ، پس هغوئ دَ پاره هلاکت دے ، فرمانبرداری کول پکار دی او ښهٔ خبره کول پکار دی خو چه (دَ جهاد) فیصله

الْاَمْرُ ۚ فَلَوْ صَدَقُوا اللّٰهَ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ㉑ فَهَلْ عَسَيْتُمْ

دَ کار | پس که چرے | دوی رښتینی شول | الله سره | نو بهتره ده | دوئ دَ پاره | پس آیا | تاسو نه دا اُمید دے

وشوه نو که دغه وخت هم دوئ دَ الله تعالیٰ سره رښتینی وے نو ورله به ډیره ښهٔ وه بیا له تاسو نه دا هم توقع ده

اِنْ تَوَلَّيْتُمْ اَنْ تُفْسِدُوْا فِى الْاَرْضِ وَتُقَطِّعُوْٓا اَرْحَامَكُمْ ㉒ اُولٰٓئِكَ

که چرے تاسو مخ واړوئ | نو فساد به وکړئ | په زمکه کښے | او پرے به کړئ | خپلے رشتے | هم دا خلق

که چرے تاسو (دَ جهاد او ایمان نه) مخ واړوئ چه دَ زمکے په مخ فساد خور کړئ او دَ خپلو لوئ تعلقات ختم کړئ ، دغه خو هغه

الَّذِيْنَ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فَاَصَمَّهُمْ وَاَعْمٰٓى اَبْصَارَهُمْ ﴿٢٣﴾ اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ

هغه خلق دي | چه لعنت وکړو په دوي | الله | پس کانړه ئې کړل دوي | او ړندئې کړل | سترګې د دوي | نو آيا دوي غور نه کوي

کسان دي چه الله تعالىٰ پرې لعنتونه ورولي دي نو کانړه کړي ئې دي او سترګې ئې ورله ړندې کړي دي. نو آيا دوي په قرآن مجيد کښې

الْقُرْاٰنَ اَمْ عَلٰى قُلُوْبٍ اَقْفَالُهَا ﴿٢٤﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ ارْتَدُّوْا

په قرآن کښې | يا په زړونو باندې | د دوي تالې پرتې دي | بيشکه کوم خلق چه | اپسته وګرځيدل

فکر نه کوي يا د دوي په زړونو باندې تالې لګيدلې دي؟ بيشکه هغه خلق چه د هدايت

عَلٰٓى اَدْبَارِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى ۙ الشَّيْطٰنُ

په شا ګانو خپلو | پس له دې نه | چه ښکاره شوه | دوي ته | لاره د هدايت | شيطان

د ښکاره کيدو نه پس هم مرتد شول، شيطان د دوي (عملونه)

سَوَّلَ لَهُمْ ۗ وَاَمْلٰى لَهُمْ ﴿٢٥﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ

(دا کار) ښائسته کړو | دوي ته | او مهلت ئې ورکړو دوي ته | دا | ځکه چه دوي به | وئيل | هغه خلقو ته

د دوي په نظر کښې ښائسته کړل او دوي لره ئې اوږده اُميدونه ورکړل، دا په دې وجه چه دوي هغو خلقو ته کوم چه

كَرِهُوْا مَا نَزَّلَ اللّٰهُ سَنُطِيْعُكُمْ فِيْ بَعْضِ الْاَمْرِ ۚ

چه ناخوښه ئې کړل | هغه څه چه نازل کړل | الله | چه ژر زر به مونږ ستاسو خبره ومنو | په ځنې | کار کښې

د الله تعالىٰ د نازل کړي کتاب نه بيزاره دي، داوئيل چه مونږ به ستاسو ځنې خبرې ومنو.

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِسْرَارَهُمْ ﴿٢٦﴾ فَكَيْفَ اِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ

او الله | پوهيږي | د دوي په پټو خبرو | پس څه حال به وي | هرکله چه د دوي روح قبض کوي | فرښتې

او الله تعالىٰ د دوي په پټو خبرو ښه پوهه دې. نو هغه وخت به د دوي څه حال وي چه فرښتې به ترې روحونه اخلي

يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ ﴿٢٧﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ اتَّبَعُوْا مَآ

چه وهي به | مخونه د دوي | او شاګانې د دوي | دا | په دې وجه چه دوي | پيروي وکړه | د هغه خبرې

او مخونه او شاګانې به ورله وهي. دا ځکه چه دوي په هغه لاره لاړل چه الله تعالىٰ

اَسْخَطَ اللّٰهَ وَكَرِهُوْا رِضْوَانَهٗ فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ ﴿٢٨﴾

چه ناراضه ئې کړو | الله | او دوي ناخوښه کړه | د ده رضامندي | نو ده برباد کړل | د دوي عملونه

پرې ناراضه شو، او د هغه د رضا (د کارونو) نه بيزاره شول نو الله تعالىٰ د دوي عملونه برباد کړل.

اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ اَنْ لَّنْ يُّخْرِجَ اللّٰهُ اَضْغَانَهُمْ ﴿٢٩﴾

آيا | خيال وکړو | هغه کسانو چه | په زړونو د هغوي کښې | بيماري ده | چه هيڅ کله به ښکاره نه کړي | الله | کينې د دوي

آيا د چا په زړونو کښې چه مرض پروت دې هغوي دا ګمان کوي چه الله به هيڅ د هغوي دښمنئ نه رابرسيره کوي؟

وَلَوْ نَشَآءُ لَاَرَيْنٰكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ۗ

او که چرې غوښتلې مونږ | نو ښودلي به وو مونږ تاته دوي | پس خامخا به پيژندلي وو تا دوي لره | د دوي د شکل نه

او که چرې مونږ غوښتلې نو مونږ به تا ته هغه خلق ښودلي وو نو تا به د هغوي د مخونو نه هغوي پيژندلي وو

وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِىْ لَحْنِ الْقَوْلِ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اَعْمَالَكُمْ ﴿٣٠﴾ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ

او خامخا به ته پېژنې دوی | دَ طرز کلام نه | او الله | پېژنی | عملونه ستاسو | او خامخا به مونږ آزمېښت وکړو په تاسو

او دَ خبرو په طرز خو به ئې (هسې هم) وپېژنې او الله تعالیٰ ته ستاسو دَ ټولو عملونه په ښه شان معلوم دی او مونږ به ضرور ستاسو

حَتّٰى نَعْلَمَ الْمُجٰهِدِيْنَ مِنْكُمْ وَالصّٰبِرِيْنَ وَنَبْلُوَا۠ اَخْبَارَكُمْ ﴿٣١﴾

تر دے چه | مونږ معلوم کړو | مجاهدین | له تاسو نه | او صبر کوونکی | او وُ آزمايو | ستاسو حالات

آزمېښت کوو چه مجاهدین او (په میدان کښے) ټینګ اودریدونکی درکښے څرګند وُپېژنو او ستاسو دَ حالت اندازه واخلو۔

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَشَآقُّوا الرَّسُوْلَ

بیشکه | کوم خلق چه | انکار وکړو | او منع ئې کړل (خلق) | دَ لارے نه | دَ الله | او مخالفت ئې وکړو | دَ پیغمبر

څوک چه کافران شول ، او خلق ئې دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه منع کړل ، او دَ رسول مخالفت ئې وکړو

مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدٰى ۙ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْئًا ؕ

پس له دے نه چه | واضح شوه | په دوی | سمه لاره | دوی به هیڅکله ضرر ونه رسوی | الله ته | دَ څۀ څیز

پس له دے نه چه سمه لاره هغوئ ته واضحه شوه ، نو هغوئ به الله تعالیٰ ته هیڅ ضرر ورنه کړے شی۔

وَسَيُحْبِطُ اَعْمَالَهُمْ ﴿٣٢﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا

او دے به زر ضائع کړی | دَ دوئ عملونه | اے ایمان والو ! | حکم منئ | دَ الله | او حکم منئ

او الله تعالیٰ به دَ دوئ عملونه برباد کړی ۔ اے مؤمنانو ! دَ الله تعالیٰ حکمونه منئ او دَ رسول په

الرَّسُوْلَ وَلَا تُبْطِلُوْۤا اَعْمَالَكُمْ ﴿٣٣﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا

دَ رسول | او مۀ ضائع کوئ | خپل عملونه | بیشکه | هغه خلق چه | انکار ئې وکړو | او منع ئې کړل (خلق)

وینا عمل کوئ او خپل عملونه مۀ بربادوئ ۔ بیشکه څوک چه کافران شول او خلق ئې دَ الله تعالیٰ

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ مَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ﴿٣٤﴾

دَ لارے نه | دَ الله | بیا دوی مړۀ شول | او دوی کافران وو | نو هیڅ کله به ونۀ بخښی | الله | دوی لره

دَ لارے نه منع کړل ، بیا هم دَ غسے کافران مړۀ شول نو الله تعالیٰ به هغوئ هیڅکله ونۀ بخښی ۔

فَلَا تَهِنُوْا وَتَدْعُوْۤا اِلَى السَّلْمِ ۖ وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ ۖ وَاللّٰهُ

پس تاسو سستی مۀ کوئ | او دعوت مۀ ورکوئ | صلحے طرف ته | او هم تاسو به | غالب یئ | او الله

نو تاسو همت مۀ بائیلئ او (دَ ځان نه) دَ روغے جوړے دعوتونه مۀ ورکوئ او هم تاسو به غالب یئ ۔ او الله تعالیٰ

مَعَكُمْ وَلَنْ يَّتِرَكُمْ اَعْمَالَكُمْ ﴿٣٥﴾ اِنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ

تاسو سره دے | او دے به هیڅکله نقصان درنه کړی تاسو ته | ستاسو عملونو کښے | بیشکه | ژوند | دَ دُنیا | لوبے

ستاسو ملګرے دے او ستاسو په عملونو کښے به هیڅ کے نۀ راولی ۔ دَ دُنیا دا ژوند خو بس لوبے تماشے

وَّلَهْوٌ ؕ وَاِنْ تُؤْمِنُوْا وَتَتَّقُوْا يُؤْتِكُمْ اُجُوْرَكُمْ وَلَا يَسْـَٔلْكُمْ

او تماشه ده | او که چرے تاسو ایمان راوړئ | او پرهیزګاری وکړئ | نو در به کړی تاسو ته | ستاسو اجر | او نۀ به غواړی له تاسو نه

دی ، او که تاسو ایمان راوړو او پرهیزګار پاتے شوئ نو الله تعالیٰ به تاسو ته اجرونه درکړی او هغه تاسو نه مالونه

أَمْوَالَكُمْ ﴿۳۶﴾ إِنْ يَسْأَلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوا وَيُخْرِجْ

ستاسو مالونه | که چرې دوی وغواړي له تاسو هغه (مال) | بيا تنګ کړي تاسو | نو تاسو به شومتيا وکړئ | او را وبه باسي

نه غواړي که هغه درنه مالونه وغواړي او ترېسه يسه ئې درنه غواړي نو تاسو به شومتيا وکړئ او په دے به

أَضْغَانَكُمْ ﴿۳۷﴾ هَاأَنْتُمْ هَٰؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ لِتُنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ

پټے کينے ستاسو | واورئ! تاسو خو | هغه (خلق) يئ | چه تاسو بللے شئ | چه خرڅ وکړئ | په لاره کښے | د الله

ستاسو خفګانونه راښکاره کړي هو! تاسو داسے خلق يئ چه څۀ وخت درته د الله په لاره کښے د مال لګولو بلنه درکولے شي

فَمِنْكُمْ مَنْ يَبْخَلُ ۖ وَمَنْ يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَنْ نَفْسِهِ ۚ

پس څوک له تاسو نه | هغه دے چه بخل کوي | او څوک چه | بخل کوي | نو بيشکه | هغه بخل کوي | د خپل ذات خلاف

نو څوک درکښے داسے شته چه شومتيا وکړي او څوک چه شومتيا وکړي نو هغه د خپل ځان سره شومتيا کوي

وَاللَّهُ الْغَنِيُّ وَأَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ ۚ وَإِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا

او الله | غني دے | او تاسو | محتاج يئ | او که چرے مخ واړوئ تاسو | نو په بدل کښے به راولي الله | يو بل قوم

او الله تعالىٰ غني (بادشاه) دے او تاسو ورته حاجتمند يئ او که تاسو مخ واړولو نو ستاسو په ځائے به بو بل قوم

غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُمْ ﴿۳۸﴾

تاسو نه علاوه | بيا به | هغه نۀ وي | په شان ستاسو |

راپيدا کړي چه هغوئ به ستاسو په شان (مخ اړونکي) نۀ وي -


ع ۱۰ / ۸


سُورَةُ الْفَتْحِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ تِسْعٌ وَعِشْرُونَ آيَةً وَأَرْبَعُ رُكُوعَاتٍ

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

سورة فتح په مدينه کښے نازل شوه | شروع کوم په نوم د الله چه لوئے مهربان ډير زيات رحم کونکے دے | په دے کښے ۲۹ آيتونه او ۴ رکوع دي

د الله پاک په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان د ډير زيات رحم خاوند دے

إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا ﴿۱﴾ لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ

بيشکه مونږ فتح درکړه | تاته | فتح | ښکاره | چه معاف کړي | تا د پاره | الله | هغه څۀ چه وړاندې تېر شوي دي

بيشکه مونږ تاله جاري باري فتح درکړه - چه الله تعالىٰ ستا وړاندينۍ او وروستنۍ ټولے

مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ

له ګناه ستا نه | او هغه څۀ چه وروستو پاتے شوي دي | او پوره کړي | خپل نعمت | په تا باندې | او چه وښائي تاته

خطاګانے معاف کړي ، او خپل نعمتونه درباندې پوره کړي او په سمه نيغه

صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا ﴿۲﴾ وَيَنْصُرَكَ اللَّهُ نَصْرًا عَزِيزًا ﴿۳﴾ هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ

لاره | سمه | او مدد درکړي تاته | الله | مدد | زبردست | هم هغه دے | چا چه | نازل کړو

لاره د بوځي - او الله تعالىٰ درله په عزت سره يرے درکړي - الله تعالىٰ هغه ذات دے چه

السَّكِينَةَ فِي قُلُوبِ الْمُؤْمِنِينَ لِيَزْدَادُوا إِيمَانًا مَعَ إِيمَانِهِمْ ۗ

اطمينان | په زړونو کښے | د مؤمنانو | چه نور زيات شي | په ايمان کښے | د خپل ايمان سره

د مؤمنانو په زړونو کښے ئے اطمينان پيدا کړو چه د هغوئ د خپل وړومبني ايمان سره نور ايمان هم سيورا شي.

وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۟ۙ

اوالله دَپاره دی | لښکرے | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او دے | الله | پوهه | خاوند دَ حکمت

او دَ آسمانونو او دَ زمکے ټولے لښکرے دَ الله تعالیٰ دی او الله تعالیٰ په هرڅهٔ پوهه دے دَ حکمتونو خاوند دے

لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

چه داخل کړی الله | مؤمنان سړی | او مؤمنانے ښځے | په باغونو کښے | چه بهیږی به | لاندِ دَ هغے نه | نهرونه

چه الله تعالیٰ مؤمنان سړی او مؤمنانے ښځے داسے باغونو ته ورننباسی چه دَ هغے لاندِ به ولے بهیږی

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ ؕ وَكَانَ ذٰلِكَ عِنْدَ اللّٰهِ فَوْزًا

همیشه به وی | په هغے کښے | او لرے به کړی | له دوی نه | بدیانے دَ دوی | او دَه | دا | په نزد دَ الله | کامیابی

تل به پکښے اوسیږی او چه ګناهونه ورنه معاف کړی او دغه دَ الله تعالیٰ په نزد غټه

عَظِيْمًا ۟ۙ وَّيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكٰتِ

لویه | او دے به عذاب ورکړی | منافقانو سړو | او منافقانو ښځو | او مشرکانو سړو | او مشرکانو ښځو ته

کامیابی دَه او الله تعالیٰ به سزا ورکړی منافقانو سړو او منافقانو ښځو او مشرکانو سړو او مشرکانو ښځو له

الظَّآنِّيْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ ؕ عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ ۚ وَغَضِبَ

چه ګمان کوونکی دی | په الله | ګمان بَد | هم په دوی دے | چکر | بد | او غضب وکړو

چه دَ الله تعالیٰ په حقله بدګمانی کوی ، په هغوی باندِ بده ورځ راتلونکے ده ، او الله تعالیٰ به

اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ ؕ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ۟

الله | په دوی باندِ | او لعنت ئے وکړو په دوی | او تیار کړے ئے دے | دوی دَپاره | دوزخ | او بد ځائے دے | دَ واپس کیدو

ورته ډیر قهریږی او دَ خپل رحمت نه به ئے لرے ؤساتی او دوزخ ئے ورله تیار ساتلے دے او دغه ډیره خرابه تیکاؤ شوے ده

وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۟

او الله دَپاره دی | لښکرے | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | او دے | الله | غالب | دحکمت خاوند

او دَ آسمانونو او دَ زمکے ټولے لښکرے دَ الله تعالیٰ دی او الله تعالیٰ زبردست دے دَ حکمتونو خاوند دے۔

اِنَّاۤ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ۟ۙ لِّتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ

بیشکه مونږ راولیږلے ته | ګواه | او زیرے ورکوونکے | او ویروونکے | چه ایمان راوړئ تاسو | په الله | او دَ دهٔ په رسول

بیشکه چه مونږ ته ګواهی کوونکے او زیرے ورکوونکے او (دَ بدو کے ته) ویروونکے (پیغمبر) لیږلے ئے چه (اے خلقو!) تاسو په الله او دَ دهٔ په رسول

وَتُعَزِّرُوْهُ وَتُوَقِّرُوْهُ ؕ وَتُسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ۟ اِنَّ الَّذِيْنَ

او دَ دهٔ مدد وکړئ | او دَ دهٔ عزت وکړئ | او دَ الله تسبیح وکړئ | صبا | او | ماښام | بیشکه | هغه کسان چه

ایمان راوړئ او دَ دهٔ (دَ دین) مدد کوئ او دَ دهٔ تعظیم کوئ او سحر ماښام دَ دهٔ پاکی بیانوئ ، څوک چه تا نه لاس نیوے

يُبَايِعُوْنَكَ اِنَّمَا يُبَايِعُوْنَ اللّٰهَ ؕ يَدُ اللّٰهِ فَوْقَ اَيْدِيْهِمْ ۚ فَمَنْ

بیعت کوی له تا سره | بیشکه چه | دوی بیعت کوی | الله سره | لاس دَ الله دے | دَ پاسه دَ لاسونو دَ دوی | پس څوک چه

کوی هغوی (په حقیقت کښے) دَ الله سره بیعت کوی ، دَ الله تعالیٰ لاس دَ هغوی دَ لاسونو دَ پاسه پروت دے ، نو بیا څوک

نَكَثَ فَاِنَّمَا يَنْكُثُ عَلٰى نَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ اَوْفٰى بِمَا عٰهَدَ عَلَيْهُ

مات کړی (وعده) | نو بیشکه دے ئے ماتوی | دَخپل ځان خلاف | او څوک چه پوره کړی | هغه څهٔ | چه وعده ئے کړے ده په هغے

چه خپل لوظ مات کړی نو دَ دهٔ دَ بے لوظئ سزا به هم دهٔ ته ملاویږی او څوک چه دا لوظ کوم چه دهٔ دَ الله سره کړے

اللّٰهَ فَسَيُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ⑩ سَيَقُوْلُ لَكَ الْمُخَلَّفُوْنَ

دَ الله سره | پس زر به ورکړی دهٔ ته | اجر | لوئے | زر به وائی | تا ته | وروستو پاتے شوی خلق

دے پوره کړی نو الله به ډیر زر دهٔ ته ډیر لوئے اجر ورکړی. کوم بانډیخیان چه (په دے سفر کښے) وروستو پاتے شوی

مِنَ الْاَعْرَابِ شَغَلَتْنَآ اَمْوَالُنَا وَاَهْلُوْنَا فَاسْتَغْفِرْ لَنَا ۚ

له بانډو دَ خلقو نه | مشغول کړو مونږ | مالونو زمونږ | او اهل زمونږ | پس بخښنه وُغواړه | دَ پاره زمونږ

وو هغوئ به درته وائی چه مونږ زمونږ مال او بال بچ مشغول وُساتلو (او په جهاد کښے شریک نهٔ شو) نو زمونږ دَ پاره (دَ الله نه)

يَقُوْلُوْنَ بِاَلْسِنَتِهِمْ مَّا لَيْسَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ ۚ قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ

دوی وائی | په ژبو خپلو | هغه څهٔ | چه نهٔ دی | په زړونو دَ دوئ کښے | ووایه | چه څوک | اختیار لری

معافی وُغواړه دوئ په خپلو ژبو باندِ هغه خبرے کوی چه دَ دوئ په زړونو کښے نشته، تپوس وکړه چه هغه څوک دی چه دَ الله

لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا اِنْ اَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا اَوْ اَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا ۚ

تاسو دَ پاره | دَ الله مخکښے | دَ څهٔ څیز | که چرے | دے وغواړی تاسو ته | نقصان رسول | یا وغواړی | تاسو ته | فائده رسول

په معامله کښے تاسو دَ پاره څهٔ اختیار وُلری که چرے هغه تاسو ته څهٔ نقصان رسول وغواړی یا تاسو ته فائده درکول وُغواړی (څوک

بَلْ كَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ⑪ بَلْ ظَنَنْتُمْ اَنْ

بلکه | دے الله | په هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئ | خبردار | (نه) بلکه | خیال کړے وو تاسو | چه

څهٔ کولے نهٔ شی) نه! بلکه الله تعالیٰ ستاسو دَ ټولو دَ عملونو نه خبر دے. تاسو خو یقین کړے وو چه دا رسول او

لَّنْ يَّنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ وَالْمُؤْمِنُوْنَ اِلٰٓى اَهْلِيْهِمْ اَبَدًا وَّزُيِّنَ

چه کله به واپس نهٔ کرځی | رسول | او مؤمنان | خپل کور والو ته | همیشه | او ښهٔ ښکاره شو

(په جهاد کښے شریک) مؤمنان به چرے هم خپلو کورونو ته واپس رانهٔ شی او دا خبره درته په

ذٰلِكَ فِىْ قُلُوْبِكُمْ وَظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ ۚ وَكُنْتُمْ قَوْمًا بُوْرًا ⑫

دا خبره | ستاسو زړونو ته | او تاسو گمان وکړو | گمان بد | او شوئ تاسو | قوم | هلاک شوے

خپلو زړونو کښے بنائسته ښکاره شوے وه او تاسو ډیره بدگمانی کړے وه او هم په خپله برباد شوئ

وَمَنْ لَّمْ يُؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَاِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ

او څوک چه | نهٔ | راؤړی ایمان | په الله | او دَ دهٔ په رسول | نو بیشکه مونږ تیار کړے دے | دَ کافرانو دَ پاره

او څوک چه په الله تعالیٰ او دَ دهٔ په رسول باندِ ایمان نه راؤړی نو مونږ دَ کافرانو دَ پاره دَ دوزخ اور تیار

سَعِيْرًا ⑬ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ

اور | او الله دَ پاره دے | حکومت | دَ آسمانونو | او دَ زمکے | بخښنه کوی هغه چا ته | چه وغواړی

کړے دے. او دَ آسمانونو او دَ زمکے بادشاهی یوازے دَ الله تعالیٰ ده دَ چا په حقله چه وغواړی بخښنه وکړی

وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ⑭ سَيَقُوْلُ

او عذاب ورکوی دے | چاته چه غواړی | او دے الله | بخښونکے | مهربان | ژر به ووائی

او چاله چه وغواړی په عذاب ئے اخته کړی، او الله تعالیٰ بخښونکے مهربان دے ۔ دغه وروستو پاتے کیدونکی

الْمُخَلَّفُوْنَ اِذَا انْطَلَقْتُمْ اِلٰى مَغَانِمَ لِتَاْخُذُوْهَا ذَرُوْنَا نَتَّبِعْكُمْ

وروستو پاتے شوی خلق | هر کله چه | روان شئ تاسو | د غنیمتونو طرف ته | چه تاسو را واخلئ هغه | پریږدئ مونږ | چه روان شو مونږ تاسو پسے

خلق (چه په جهاد کښے شریک نهٔ وو) به درته ووائی، څهٔ وخت چه تاسو په غنیمتونو اخستو پسے روان شئ چه مونږ هم پریږدئ

يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّبَدِّلُوْا كَلٰمَ اللّٰهِ ۭ قُلْ لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا كَذٰلِكُمْ

دوی غواړی | چه بدل کړی | حکم د الله | ووایه | هیڅ کله به پیروی نهٔ کوئ تاسو زمونږ | هم دغه شان

چه درپسے درشو، دوئ غواړئ چه د الله تعالیٰ حکم بدل کړی (اے نبیؐ!) ته ووایه چه تاسو هیچرے مونږ سره تلے نهٔ شئ

قَالَ اللّٰهُ مِنْ قَبْلُ ۚ فَسَيَقُوْلُوْنَ بَلْ تَحْسُدُوْنَنَا ۭ بَلْ كَانُوْا

وفرمائیل | الله | له دے نه وړاندې | پس دوی به ووائی | چه (نه) بلکه | تاسو حسد کوئ مونږ سره | (نه) بلکه | دوئ

الله تعالیٰ د وړاندې نه د غسے فرمان کړے دے په دے خبره به دوئ ووائی چه نه! بلکه تاسو مونږ سره کینه ساتئ، رشتیا خبره

لَا يَفْقَهُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ⑮ قُلْ لِّلْمُخَلَّفِيْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ

نهٔ پوهیدل | مګر | لږ | ووایه | وروستو پاتے شوو ته | له بانډو د خلقونه

داده چه دوئ په سمه خبره کم کوز پوهیږی. (اے نبیؐ!) ته وروستو پاتے کیدونکو بانډیځیانو ته ووایه چه

سَتُدْعَوْنَ اِلٰى قَوْمٍ اُولِىْ بَاْسٍ شَدِيْدٍ تُقَاتِلُوْنَهُمْ

ډیر ژر به تاسو راوبللے شئ | د یو قوم طرف ته | چه په جنګ کښے | ډیر سخت دی | چه جنګ به کوئ تاسو د هغوئ سره

ډیر ژر به تاسو د یو داسے قوم مقابلے کولو ته راوبللے شئ چه هغوئ به ډیر سخت جنګیالی خلق وی (نو) یا به ورسره لګیا یئ

اَوْ يُسْلِمُوْنَ ۚ فَاِنْ تُطِيْعُوْا يُؤْتِكُمُ اللّٰهُ اَجْرًا حَسَنًا ۚ وَاِنْ تَتَوَلَّوْا

یا به هغوئ اسلام قبول کړی | بیا که چرے | تاسو حکم ومنئ | نو ورکړی به تاسو ته | الله | اجر | نیک | او که چرے تاسو مخ واړوئ

جنګونه کوئ او یا به هغوئ مسلمانان شی ۔ بیا که چرے تاسو حکم ومنئ نو الله به تاسوله ښهٔ اجر درکړی او که چرے تاسو مخ واړوئ

كَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِّنْ قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ⑯ لَيْسَ

لکه څنګه چه | تاسو مخ اړولے وو | له دے نه وړاندې | (نو) دے به عذاب درکړی تاسو ته | عذاب | دردناک | نشته دے

لکه څنګه چه مو وړاندې مخ اړولے وو نو الله تعالیٰ به تاسوله دردناک عذاب درکړی ۔ نهٔ په ړوند

عَلَى الْاَعْمٰى حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْاَعْرَجِ حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْمَرِيْضِ

په ړوند باند | څهٔ ګناه | او نهٔ | په شل بانډې | څهٔ ګناه | او نهٔ | په بیمار بانډې

بانډې څهٔ ګناه شته، او نهٔ په ګډ شل بانډې څهٔ ګناه شته او نهٔ په بیمار باند څهٔ ګناه

حَرَجٌ ۭ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا

څهٔ ګناه | او څوک چه | حکم ومنی | د الله | او د دهٔ د رسول | داخل به کړی دے | په باغونو کښے | چه بهیږی به | لاندې د هغے نه

شته او څوک چه د الله تعالیٰ او د دهٔ د رسولؐ خبره ومنی نو هغه به دے داسے باغونو ته ورداخل کړی چه د هغے لاندې به

الْاَنْهٰرُ ۚ وَمَنْ يَّتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ عَذَابًا اَلِيْمًا ⑰ لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ

نهرونه | او څوک چه | مخ واړوي | نو ده به عذاب ورکړي دی ته | عذاب | دردناک | بیشکه | راضي شو | الله

بهیږي ، او څوک چه تری نه مخ واړوي نو هغه له به دردناک عذاب ورکړي ، بیشکه الله تعالیٰ د مؤمنانو نه

عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا

له مؤمنانو نه | کوم وخت چه | دوی بیعت وکړو تاسره | لاندې | د اونې | پس عالم وو الله | په هغه څه

رضا شو څه وخت چه هغوئ ستا په لاس د اونې لاندې بیعت کولو ، او الله تعالیٰ ته د هغوئ د

فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا ⑱

په د دوئ په زړونو کښې وو | پس نازل کړو ده | اطمینان | په دوئ باندې | او په بدله کښې ئې ورکړه دوئ ته | فتح نزدې

زړونو خبره (په ښه شان) معلومه وه نو الله تعالیٰ ورله اطمینان نصیب کړو او هغوئ ته ئې یوه نزدې (دیریا) کښته ورکړه .

وَّمَغَانِمَ كَثِيْرَةً يَّاْخُذُوْنَهَا ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ⑲ وَعَدَكُمُ

او غنیمتونه | ډیر | چه دوی اخلي هغه | او دے الله | ډیر غالب | د حکمت خاوند | وعده کړې وه تاسو سره

او (ورسره) ډیر غنیمتونه چه دا خلق ئې اخلي . او الله تعالیٰ زبردست دے د حکمتونو خاوند دے ، الله تعالیٰ تاسو

اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً تَاْخُذُوْنَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ وَكَفَّ

الله | د غنیمتونو | ډیرو | چه حاصلوئ به تاسو هغه | پس ده په تندئ درکړو | تاسو ته دا | او ده منع کړل

سره د (نورو) ډیرو غنیمتونو وعده کړے ده چه تاسو به ئې اخلئ، نو د هغې نه دا یو ه (کښته) ئې لاس په لاس درکړه ، او له تاسو نه

اَيْدِيَ النَّاسِ عَنْكُمْ ۚ وَلِتَكُوْنَ اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَيَهْدِيَكُمْ

لاسونه | د خلقو | له تاسو نه | او د پاره د دے چه وي | نخښه | د مؤمنانو د پاره | او چه وښائی تاسو ته

ئې د خلقو لاسونه منع کړل ، او دا ځکه چه د مؤمنانو د پاره یوه نمونه شي ، او چه تاسو په

صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ⑳ وَّاُخْرٰى لَمْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهَا قَدْ اَحَاطَ اللّٰهُ

لاره | سمه | او دویمه (هغه فتح) | چه تاسو لا قابو نه دے موندلے په هغې | احاطه کړے ده | الله

سمه نېغه لاره واچوي ، او یوه بله (کښته) هم (نزدے) ده چه لا ستاسو قابو کښې نه ده راغلې د هغه کښته الله په خپله

بِهَا ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا ㉑ وَلَوْ قٰتَلَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

په هغې | او دے | الله | په هر څیز باندې | قادر | او که چرې جنګیدلے تاسو سره | هغه خلق | چه کافران دي

احاطه کښې اخستې ده او الله تعالیٰ په هر څیز باندې قدرت لري . او که دا کافران تاسو نه جنګ نه راوړاندې شوی وے

لَوَلَّوُا الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ㉒ سُنَّةَ اللّٰهِ الَّتِيْ

نو خامخا به کړځولے وے دوی | شاګانې | بیا به | نه وو موندلے دوی | څوک دوست | او نه څوک مددګار | (دا) د الله دستور دے | چه

نو په شا به تښتیدلي وو ، بیا به ئې نه څوک دوست موندلے وو او نه څوک مددګار . الله تعالیٰ هم دغه دستور

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ ۖۚ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ㉓ وَهُوَ الَّذِيْ

تیر شوے دے | له دے نه وړاندې | او هیڅکله به بیا نه مومې ته | د الله په دستور کښې | تبدیلي | او هم دے | هغه ذات چه

ساتلے ده چه پخوا راسے جاري راغلے ده او ته به د الله تعالیٰ په دستور کښې هیڅ تبدیلي بیا نه مومې . او الله تعالیٰ هغه ذات دے

كَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ بَعْدِ اَنْ

چه منع ئے کړل | لاسونه دَدوی | له تاسونه | او ستاسو لاسونه | له هغوئی نه | دَ مکے په وادئی کښے | پس له هغے نه چه

چه دَ هغوئی لاسونه ئے تاسونه او ستاسو لاسونه ئے دَ هغوئی نه دَ مکے په سرحد باندِ ونیول ، دَ هغے نه پس چه

اَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرًا ﴿٢٤﴾ هُمُ

دهٔ غالب کړئی تاسو | په دوئی باندِ | او دے الله | په هغه څهٔ چه تاسوئے کوئی | بینا | هم دا هغه خلق دی

تاسو له ئے په هغوئی باند قابو درکړو ، او الله تعالیٰ ستاسو کارونه لیدل کتل ۔ دا هغه خلق دی

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْهَدْيَ مَعْكُوْفًا

کوم چه | انکار وکړو | او منع ئے کړئی تاسو | له مسجد حرام نه | او قربانی | را منع کړے شوے

چه کفر ئے وکړو او تاسوئے دَ مسجد حرام نه منع کړئی ، او دَ قربانئی څاروی ئے خپل

اَنْ يَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ ۚ وَلَوْلَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُوْنَ وَنِسَآءٌ مُّؤْمِنٰتٌ

(له دے نه) چه ورسیږی | ځائے خپل ته | او که چرته نه وے | سړی | مؤمنان | او ښځے | مؤمنانے

ځائے ته دَ رسید و نه منع کړل او که چرے دا اندیښنه نه وے چه ډیر مؤمنان سړی او ډیرے مؤمنانے ښځے

لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ اَنْ تَطَئُوْهُمْ فَتُصِيْبَكُمْ مِّنْهُمْ مَّعَرَّةٌ ۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ

چه نهٔ پیژنئی تاسو هغوئی | چه پائمال به کړئی تاسو دوی | پس وُبه رسیږی تاسو ته | په وجه دَ دوئی | نقصان | په بے خبرئی کښے

به تاسو دَ بنپولانِ چخړی کړئی دَ کوم په وجه چه به (پس له هغے نه) تاسو ته خفګان رسیدو (نو تاسو له به ئے اوس فتح درکړے وه)

لِيُدْخِلَ اللّٰهُ فِيْ رَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۚ لَوْ تَزَيَّلُوْا لَعَذَّبْنَا

دَ پاره دَ دے چه داخل کړی | الله | په خپل رحمت کښے | څوک چه | دے وغواړی | که چرے دا خلق جدا وے | نو خامخا به عذاب ورکړے وو

الله تعالیٰ چه دَ چا په حقله وغواړی هغوئی په خپل رحمت کښے داخل کړی۔ که دغه (بے کسه) مسلمانان بیا ارخ ته شوی

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿٢٥﴾ اِذْ جَعَلَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

هغه خلقو ته | چه کافران دی | له دوی نه | عذاب | دردناک | هر کله چه (پوخ) کړو | هغه خلقو چه | کافران دی

وے نو مونږ به کافرانو له دردناک عذاب ورکړے وو ۔ څهٔ وخت چه کافرانو په خپلو

فِيْ قُلُوْبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ

په خپلو زړونو کښے | ضد | ضد | دَ جاهلیت (دَ زمانے) | بیا نازل کړو | الله

زړونو کښے دَ جاهلیت دَ زمانے په شان دَ ضد پخه اراده وکړه ، نو الله تعالیٰ خپل رسول

سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ

اطمینان خپل | په خپل رسول باند | او په مؤمنانو باندِ | او لازمه ئے کړه په دوئی باندِ | خبره

او مؤمنانو ته دَ تحمّل او برداشت طاقت ورکړو او دوئی ئے دَ پرهیزګارئی په خبره

التَّقْوٰى وَكَانُوْآ اَحَقَّ بِهَا وَاَهْلَهَا ۚ وَكَانَ اللّٰهُ

دَ پرهیزګارئی | او | وُو دوی | زیات حقدار | دَ دے | او اهل دَ دے | او دے | الله

ټینګ کړل او هم دوئی دَ ټولو نه زیات دَ دے څیز حقدار او اهل وو ، او الله تعالیٰ به هر څیز

بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿٢٦﴾ لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّءْيَا بِالْحَقِّ

په هر شیز باندې | پوهه | بیشکه | رښتیا ښکاره کړه | الله | خپل رسول ته | خوب | په حق سره

پوره پوره پوهه دے۔ بیشکه چه الله تعالیٰ خپل رسول ﷺ ته رښتینے خوب ښودلے دے۔

لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ مُحَلِّقِيْنَ

چه خامخا به داخل شئ تاسو | مسجد | حرام ته | که چرے الله وغواړی | په امن سره | خرئیونکی

که الله تعالیٰ ته منظوره وه نو تاسو به مسجد حرام ته په اطمینان سره ورننوزئ، سرونه

رُءُوْسَكُمْ وَمُقَصِّرِيْنَ لَا تَخَافُوْنَ فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوْا

د سرونو خپلو | او وېښتهٔ پریکونکی | تاسو به نهٔ ویرېږئ | پس دهٔ معلومه کړه | هغه خبره چه | تاسو نهٔ وه معلومه

خرئیونکی او وېښتهٔ پریکونکی چه هیڅ اندیښنه به مو نهٔ وی نو الله تعالیٰ ته هغه هرڅهٔ معلوم وو چه تاسو ترے نه

فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿٢٧﴾ هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهُ

نو ورکړه دهٔ | وړاندې له دے نه | فتح نزدے | هم دے دے هغه ذات چه | راوئ لیږلو | خپل رسول

خبرنهٔ وئ نو الله تعالیٰ د هغے نه وړاندې یوه نزدے کتح درکړه ۔ هم دغه (الله) خو دے چه خپل رسول (محمد ﷺ) ئے د

بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ ۚ وَكَفٰى

په هدایت | او حق دین سره | د پاره د دے چه غالب کړی دا | په دینونو | ټولو | او کافی دے

(کتاب د) هدایت او د حق دین سره راولیږلو چه دا دین په نورو ټولو دینونو باندې غالب کړی او د حق د ګواهئ

بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴿٢٨﴾ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ

الله | ګواه | محمد | رسول دے | د الله | او کوم خلق چه | د دهٔ سره دی | سخت دی | په کافرانو

د پاره الله تعالیٰ کافی دے. محمد د الله تعالیٰ رسول دے او کوم خلق چه ورسره ملګری دی هغوئ کافرانو د پاره سخت

رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ

مهربان دی | په خپل مینځ کښے | ته ئے وینے دوی | رکوع کوونکی سجده کوونکی | دوی لټوی | فضل | د الله

او په خپل مینځ کښے مهربان دی، ته ئے وینے کورے چه کله په رکوع ټیټ وی او کله په سجده پراتهٔ وی، د الله تعالیٰ فضل او رضامندی

وَرِضْوَانًا ۚ سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ۚ ذٰلِكَ

او رضامندی | نخښه د دوی | په مخونو د دوئ کښے ده | د سجدو له اثر نه | دا

غواړی، د هغوئ په مخونو کښے د سجدو د اثر نخښے څرګندے ښکاری، دا په

مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ ۚ وَمَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ ۚ كَزَرْعٍ

مثال د دوی دے | په تورات کښے | او مثال (صفت) د دوی دے | په انجیل کښے | په شان د فصل دے

تورات کښے د هغوئ اوصاف راغلی دی او د هغوئ هم دا اوصاف په انجیل کښے دی، لکه پټے چه تیغه

اَخْرَجَ شَطْـَٔهٗ فَاٰزَرَهٗ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى عَلٰى سُوْقِهٖ

چه راوېستلے ئے ده | تیغه | بیا ئے دا قوی کړه | بیا هغه غټه شوه | بیا هغه ودریدله | په خپله تنه باندې

رازرغونه کړی، بیا ئے کلکه کړی، بیا هغه غټه شی نو په خپله تنه باندې تیغه ودرېږی،

يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيْظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ ؕ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ

چه خوشحالوئی ئې | زمینداران | چه په غصه کړی | په دے سره | کافران | وعده وکړه | الله | هغه کسانو سره

چه زمیندارانو ته ښکلے ښکاری (دا ترقی ئے مسلمانانو ته حکه ورکړه) چه کافران پرے غصه کړی۔ الله تعالیٰ هغه خلقو سره چه

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ۝۲۹

چه ایمان ئے راوړو | او دوی عمل وکړو | نیک | له دوئی نه | دَ بخښنے | او دَ اجر | لوئے

ایمان ئے راوړو او نیک کارونه ئے وکړل ، دَ بخښنے او دَ لوئے اجر لوظ کړے دے۔

سُوْرَةُ الْحُجُرٰتِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ ثَمَانِيَ عَشَرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سوره حجرات په مدینه کښے نازل شوه او | شروع کوم په نوم دَ الله چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | په دے کښے ۱۸ آیتونه او ۲ رکوع دی

دَ الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم خاوند دے۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاتَّقُوا

اے ایمان والؤ! | مهٔ وړاندې کیږئ | په مخکښے | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول | او وویریږئ

اے مسلمانانو ! تاسو دَ الله تعالیٰ او دَ رسول ﷺ نه (په هیڅ کار کښے) ځان وړاندې کوئی مه او دَ الله تعالیٰ نه ویریږئ

اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝۱ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْۤا

دَ الله نه | بیشکه الله | آورېدونکے | پوهه دے | اے ایمان والؤ! | مهٔ اُچتوئی

سانئ۔ الله تعالیٰ ډیر آورېدونکے ښهٔ پوهه دے۔ اے مؤمنانو ! خپل آوازونه

اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ

خپل آوازونه | دَ پاسه | دَ آواز | دَ نبی | او مهٔ | په زوره خبره کوئی | دَ دهٔ سره | په خبرو کښے

دَ نبی ﷺ دَ آواز دَ پاسه مهٔ اُچتوئی او مهٔ هغهٔ سره په زوره خبره کوئی

كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ وَاَنْتُمْ

لکه چه په زوره (خبرے کوئی) | تاسو دَ یو بل سره | چه ضائع به شی | عملونه ستاسو | او تاسو ته به

لکه چه تاسو دَ یو بل سره په زوره خبرے کوئی هسے نه چه ستاسو ټول عملونه ضائع شی او تاسو پرے

لَا تَشْعُرُوْنَ ۝۲ اِنَّ الَّذِيْنَ يَغُضُّوْنَ اَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ

خبر هم نهٔ وی | بیشکه | کوم خلق چه | ښکته ساتی | آوازونه خپل | په نزد | دَ الله دَ رسول

خبر هم نهٔ شئ۔ بیشکه کوم خلق چه دَ الله تعالیٰ دَ رسول په وړاندې خپل آوازونه ښکته ساتی

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ امْتَحَنَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ لِلتَّقْوٰى ؕ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ

هم دا هغه کسان دی | چه آزمائیلی دی | الله | زړونه دَ دوئی | دَ پاره دَ پرهیزګارئ | دَ دوی دَ پاره | بخښنه

هم دا هغه خلق دی دَ کومو زړونه چه الله تعالیٰ دَ پرهیزګارئ آزمائیلی دی۔ هغوئ له بخښنه او ډیر

وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝۳ اِنَّ الَّذِيْنَ يُنَادُوْنَكَ مِنْ وَّرَآءِ الْحُجُرٰتِ

او اجر | لوئے دے | بیشکه | کوم خلق چه | آواز کوی تاته | له وروستو | دَ کوټونه

لوئے اجر مقرر دے ۔ څوک چه تاته دَ کوټو دَ بهر نه چغې وهي

أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ④ وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا حَتّٰى تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ

اکثرله دوی نه | نه پوهیږی | اوکه چرے دوئی | صبر کړے وے | تردے چه | ته بهر راوتلے وے | دوئی ته

په هغوئی کښے اکثر کسان بے عقله دی. اوکه دوئی لږ صبر کولے تردے چه ته بخپله ورته بهر راوتلے

لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ۚ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ⑤ يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوٓا إِنْ

نو وه به | بهتره | دوی دپاره | او الله | بخښونکے | مهربان دے | اے ایمان والو ! | که چرے

نو دا به د دوئی په حق کښے بهتره وه او الله تعالیٰ بخښونکے ډیر رحم کوونکے دے اے مؤمنانو ! که یو شریر

جَآءَكُمْ فَاسِقٌۢ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوٓا أَنْ تُصِيبُوا قَوْمًا

راوړی تاسو ته | (ټوک) بدکار | څه خبر | نو تحقیق وکړئ | چه نقصان به ورسوئ تاسو | یو قوم ته

سړے در ته څه خبر راوړی نو ښهٔ تحقیق کوئ هسے نه چه په ناپوهئ کښے یو قوم ته

بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلٰى مَا فَعَلْتُمْ نٰدِمِينَ ⑥ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ فِيكُمْ

په ناپوهئ سره | بیا به شئ تاسو | په هغه څه چه وے کړئ تاسو | پښیمانه | او پوهه شئ چه | بیشکه | په تاسو کښے

نقصان ورسوئ او بیا په خپلو کړو باندے پښیمانه شئ. او په دے خبره ځان پوهه کړئ چه په

رَسُولَ اللّٰهِ ۚ لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِّنَ الْأَمْرِ لَعَنِتُّمْ وَلٰكِنَّ

رسول الله دے | که چرے | دے ستاسو وینا ومنی | په ډیرو | کارونو کښے | نو تکلیف به درته ورسیږی | لیکن

تاسو کښے د الله رسول موجود دے، ډیرے خبرے داسے وی چه که هغه په کښے ستاسو وینا ومنی نو تکلیف به درته ورسی خو

اللّٰهَ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ وَزَيَّنَهُ فِي قُلُوبِكُمْ وَكَرَّهَ

الله | خوښ کړو | تاسو د پاره | ایمان | او ښائسته ئے کړو دا | ستاسو په زړونو کښے | او کرکه ئے واچوله

الله تعالیٰ تاسو ته د ایمان محبت درنصیب کړے دے او هغه ئے ستاسو په زړونو کښے ښائسته کړے دے، او کفر

إِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ ۚ أُولٰٓئِكَ هُمُ الرّٰشِدُونَ ⑦

په تاسو کښے | د کفر | او ګناه | او نافرمانئ ته | هم دا خلق دی | لاره موندونکی

او بدعملی او نافرمانئ ئے در ته بد ښکاره کړی دی هم دغه خو په سمه لاره روان خلق دی.

فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَنِعْمَةً ۚ وَاللّٰهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ⑧ وَإِنْ

د الله په فضل | او نعمت سره | او الله | پوهه | د حکمت خاوند دے | او که چرے

د الله تعالیٰ په فضل او په انعام، او الله تعالیٰ ښهٔ پوهه د حکمتونو خاوند دے. او که چرے

طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا ۚ فَإِنْ

دوه ډلے | د مؤمنانو | جنګ کوی د یو بل سره | نو صلح کوئ | د دوئی په مینځ کښے | پس که چرے

د مؤمنانو دوه ټولګی په خپل مینځ کښے جنګیږی نو د هغوئی تر مینځ روغه کوئ نو بیا که چرے

بَغَتْ إِحْدٰىهُمَا عَلَى الْأُخْرٰى فَقٰتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتّٰى

زیاتے وکړی | په دے دواړو کښے یوه | په بله باندے | نو جنګ وکړئ تاسو | هغے سره چه | زیاتے کوی | تردے چه

یو ټولګے په بل باندے زور زیاتے کوی، نو تاسو هغه ډله سره جنګ کوئ چه زیاتے کوی تردے چه

تَفِيْٓءَ اِلٰٓى اَمْرِ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ فَآءَتْ فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ

چه رجوع وکړي | دَ الله دَ حکم طرف ته | پس که چرې | رجوع ئې وکړه | نو صلح وکړئ | دَ دې دواړو په مینځ کښې | په انصاف سره

هغه دَ الله تعالیٰ دَ حکم طرف ته راؤګرځي، نو که بیرته راؤګرځي نو دَ هغوئ ترمینځه په انصاف سره صلح وکړئ

وَ اَقْسِطُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ۝ ٩ اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ

او | انصاف کوئ | بیشکه الله | خوښوي | انصاف کوونکي | بیشکه | مؤمنان خلق

او (پوره) انصاف کوئ، یقینًا انصاف دار دَ الله تعالیٰ خوښ وي ، بیشکه مؤمنان خو ورونړه

اِخْوَةٌ فَاَصْلِحُوْا بَيْنَ اَخَوَيْكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ

(دَ یو بل) ورونړه دي | پس صلح کوئ | دَ خپلو دوؤ ورونړو په مینځ کښې | او ویریږئ | دَ الله نه | چه په تاسو

ورونړه دي نو دَ خپلو دوؤ ورونړو ترمینځه روغه راولئ ، او دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئ چه رحم درباندې

تُرْحَمُوْنَ ۝ ١٠ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ عَسٰٓى

رحم وکړے شي | اے ایمان والوُ ! | تو قے دِ نهٔ کوي | یو قوم | دَ بل قوم پورے | ممکنه ده

وکړے شي۔ اے مؤمنانو ! یوه ډله دِ بلې ډلې پورے خندا نهٔ کوي ګورے که

اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا مِّنْهُمْ وَلَا نِسَآءٌ مِّنْ نِّسَآءٍ عَسٰٓى اَنْ يَّكُنَّ

چه هغه وي بهتر | له دوی نه | او نهٔ ښځې دِ | ښځو (پورے توقے کوي) | ممکنه ده | چه هغوئ وي

هغوئ له دوئ نه غوره وي او نهٔ ښځو له په ښځو پورے خندا مکانے پکاردي کیدے شي چه هغوئ

خَيْرًا مِّنْهُنَّ ۚ وَلَا تَلْمِزُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوْا بِالْاَلْقَابِ ؕ بِئْسَ

غوره | له دوئ نه | او مهٔ لګوئ عیب | په یو بل باندِ | او مهٔ بلئ یو بل | په (بدو) لقبونو | بد

ترے نه غوره وي او په یو بل باندِ عیب مهٔ لګوئ او مهٔ یو بل ته خراب نوم نومونه اخلئ ، دَ ایمان

الِاسْمُ الْفُسُوْقُ بَعْدَ الْاِيْمَانِ ۚ وَمَنْ لَّمْ يَتُبْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ

نوم دے | فاسق | پس له ایمان نه | او څوک چه توبه ونهٔ کړي | نو هم داخلق

نه پس دَ ګناه نوم (لګول) هم خرابه خبره ده ، او څوک چه اوس هم توبه ونهٔ کړي نو هم دغه

الظّٰلِمُوْنَ ۝ ١١ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اجْتَنِبُوْا كَثِيْرًا

ظالمان دي | اے | ایمان والوُ ! | ځانونه وُساتئ | له ډیرو

کسان ظالمان دي۔ اے مؤمنانو ! دَ ګمان (زغلولو) نه ځان ډیر

مِّنَ الظَّنِّ ۫ اِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ اِثْمٌ وَّلَا تَجَسَّسُوْا

بدو ګمانونو نه | بیشکه | ځنې | ګمان | ګناه ده | او جاسوسي مهٔ کوئ

بچ ساتئ۔ یقینًا ځنې بد ګمانونه ګناه وي ، او دَ چا راز مهٔ معلوموئ

وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ بَعْضًا ؕ اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّاْكُلَ

او غیبت دِ نهٔ کوي | ځنې له تاسو نه | دَ ځنو | آیا خوښوي | څوک له تاسو نه | چه هغه خوري

او هیڅوک دِ دَ هیچا غیبت نهٔ کوي ۔ آیا په تاسو کښې به څوک دا خوښه کړي چه دَ خپل

لَحْمَ اَخِيْهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوْهُ ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ

غوښه | دَ ورور خپل | چه مړوي | پس کرکه کوئ تاسو له هغې نه | او ووېرېږئ دَ الله نه | بېشکه الله | توبه قبلوونکے

مړ ورور غوښه دِ وُخوري نو دا کار خو ستاسو خوښ نهٔ وی او دَ الله تعالیٰ نه وېره کوئ ' یقیناً الله توبه قبلوونکے

رَّحِيْمٌ ﴿۱۲﴾ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ وَّاُنْثٰى

مهربان دے | اے خلقو ! | بېشکه مونږ | پیدا کړئ تاسو | له یو سړی | او له یو ښځې نه

ډېر رحم کوونکے دے۔ اے خلقو ! مونږ تاسو دَ یو سړی او دَ یوے ښځې نه پیدا کړی یئ۔

وَجَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَّقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوْا ۭ اِنَّ اَكْرَمَكُمْ

او جوړ کړل مونږ ستاسو | قامونه | او قبیلے | دَ پاره دَ دے چه تاسو یو بل وپېژنئ | بېشکه | زیات عزت والا له تاسو نه

او مختلف قامونه او قبیلے مو درکښے جوړے کړے چه یو بل وُپېژندے شئ۔ په تاسو کښے الله سره

عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰىكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ ﴿۱۳﴾ قَالَتِ الْاَعْرَابُ

دَ الله په نزد | هغه دے چه له تاسو نه زیات پرهېزګاروی | بېشکه الله | پوهه | خبردار دے | وُوئیل | دَ کلو خلقو

زیات عزتمند هغه دے چه زیات پرهېزګار دے الله تعالیٰ په هر څهٔ پوهه زیات خبردار دے . (دا څنې) کلی وال خلق وائی

اٰمَنَّا ۭ قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا وَلٰكِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا وَلَمَّا

مونږ ایمان راوړو | وُوایه | تاسو ایمان نهٔ دے راوړے | او لیکن | وایئ | چه مونږ اسلام راوړے دے | او لا نهٔ دے

چه مونږ ایمان راوړو، ته ُووایه چه تاسو ایمان نهٔ دے راوړے هو! دا سے وایئ چه مونږه (سر کیښود) تابع شو او ایمان خو

يَدْخُلِ الْاِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۭ وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

داخل شوے ایمان | ستاسو په زړونو کښے | او که چرے | تاسو حکم ومنئ | دَ الله | او دَ دهٔ دَ رسول

لا تر اوسه ستاسو په زړونو کښے داخل هم نهٔ دے او که تاسو دَ الله تعالیٰ او دَ دهٔ دَ رسولؐ خبره ُومنئ

لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ اَعْمَالِكُمْ شَيْــًٔا ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۴﴾

(نو) دے به کم نهٔ کړی | ستاسو له عملونو نه | څهٔ څیز | بېشکه | الله | بخښونکے | مهربان دے

نو الله تعالیٰ به ستاسو په عملونو کښے دَ ذرے هومره کے هم رانهٔ ولی، بېشکه الله تعالیٰ بخښونکے ډېر رحم کوونکے دے

اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوْا

بېشکه مؤمنان | هغه خلق دی | چه ایمان ئے راوړو | په الله | او دَ دهٔ په رسولؐ | بیا | هغوئ شک ونهٔ کړو

بېشکه مومنان (خو) هغه خلق دی چه الله تعالیٰ او دَ دهٔ په رسولؐ باندِ ایمان راوړی ، بیا شک نه کوی

وَجٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ اُولٰۗئِكَ هُمُ

او جهاد ئے وکړو | په خپلو مالونو سره | او په خپلو ځانونو سره | په لاره کښے | دَ الله | هم دا خلق دی

او دَ الله تعالیٰ په لاره کښے په خپلو مالونو او په خپلو ځانونو سره جهاد کوی ، هم دغه خلق

الصّٰدِقُوْنَ ﴿۱۵﴾ قُلْ اَتُعَلِّمُوْنَ اللّٰهَ بِدِيْنِكُمْ ۭ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ

رښتیا ویونکی | وُوایه | آیا تاسو خبرور کوئ | الله ته | په دین خپل | او الله | پوهیږی

رښتینی دی۔ ته ُووایه آیا تاسو الله تعالیٰ ته دَ خپلے دینداریٔ خبرور کول غواړی ؟ سره دَ دے چه الله تعالیٰ

مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ﴿۱۶﴾

په هغه څه چه په آسمانونو کښے دی | او هغه څه | په زمکه کښے دی | او الله | په هر | څیز | ښهٔ پوهه دے

په هغه څه چه په آسمانونو (دی) او الله تعالیٰ ته (د دے نه علاوه هم) هر څهٔ معلوم دی، او الله تعالیٰ د آسمانونو او د زمکے د هر څیز نه خبر دے

یَمُنُّوْنَ عَلَیْكَ اَنْ اَسْلَمُوْا ؕ قُلْ لَّا تَمُنُّوْا عَلَیَّ اِسْلَامَكُمْ ۚ

دوی احسان کوی | په تا باندے | د دے چه دوی مسلمانان شوی دی | ووایه | احسان مهٔ کوئی | په ما باندے | د خپل اسلام راوړلو

دا خلق په تا احسان کوی چه مونږ اسلام راوړے دے ته ورته وایه چه د خپل اسلام راوړلو احسان په ما مهٔ کوئی

بَلِ اللّٰهُ یَمُنُّ عَلَیْكُمْ اَنْ هَدٰىكُمْ لِلْاِیْمَانِ اِنْ كُنْتُمْ

بلکه | الله | احسان لری | په تاسو باندے | د دے چه | دهٔ هدایت ورکړو تاسو ته | د ایمان | که چرے یئ تاسو

بلکه دا خو د الله تعالیٰ په تاسو احسان دے چه دهٔ د ایمان طرف ته ستاسو رهنمائی وکړه، که چرے تاسو

صٰدِقِیْنَ ﴿۱۷﴾ اِنَّ اللّٰهَ یَعْلَمُ غَیْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

رښتینی | بیشکه | الله | پوهیږی | په پټو خبرو | د آسمانونو | او د زمکے

رښتینی یئ۔ بیشکه الله تعالیٰ د آسمانونو او د زمکے په ټولو پټو خبرو باندے پوهیږی

وَاللّٰهُ بَصِیْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۸﴾

او الله | کوری | هغه څهٔ | چه تاسو ئے کوئی۔

او الله تعالیٰ ستاسو عملونه وینی کوری

## سُوْرَةُ قٓ مَكِّیَّةٌ وَّهِیَ خَمْسٌ وَّ اَرْبَعُوْنَ اٰیَةً وَّ ثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

سورة قٓ په مکه کښے نازل شوی او په دے کښے ۴۵ ایتونه او درے رکوع دی

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

شروع کوم په نوم د الله چه لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے

د الله په نوم شروع کوم چه لوئے مهربان د ډیر زیات رحم خاوند دے

قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِیْدِ ﴿۱﴾ ۚ بَلْ عَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ

قٓ | قسم دے په قرآن | چه خاوند د لوئے شان دے | بلکه | دوی تعجب کوی | چه راغے دوی ته | ویروونکے

قاف۔ په قرآن مجید باندے قسم دے (چه مونږ ته پیغمبر کړے یئے) خو دا خلق په دے خبره حیران دی چه دوی ته

مِّنْهُمْ فَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا شَیْءٌ عَجِیْبٌ ﴿۲﴾ ۚ ءَاِذَا مِتْنَا

هم له دوی نه | نو ووئیل | کافرانو | دا | یو څیز دے | عجیبه | آیا هر کله چه مونږ مړهٔ شو

د خپل قوم نه یو ویروونکے راغے نو کافران وائی چه دا خو ډیره عجیبه خبره ده۔ آیا مونږ چه یو ځل مړهٔ شو

وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِیْدٌ ﴿۳﴾ قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ

او شو مونږه | خاورے | دا | دوباره بیرته کرځیدل | (د عقل نه) لرے دی | بیشکه پوهیږو مونږه | په هغه څهٔ | چه کموی ئے

او (خاورے وسره) خاورے شو (نو لا بیا به راژوندی کیږو؟) دا وایسی خو (د عقل نه) ډیره لرے ده) مونږ ته خو د دوی هغه (ټول اجزا)

الْاَرْضُ مِنْهُمْ ۚ وَعِنْدَنَا كِتٰبٌ حَفِیْظٌ ﴿۴﴾ بَلْ كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ

زمکه | له دوی نه | او مونږ سره | یو کتاب دے | ساتندوںکے | بلکه | دوی دروغ وګڼړلو | حق

معلوم دی چه د زمکے خاوره ئے ترے نه راژوی او مونږ سره خو پوره رجسټر سنبال پروت دے بلکه دوئی حقه خبره دروغ وګڼړله